# د
# قلندر
# دیوان

د زلمی هیواد مل
سریزه او سمون

پښتو ټولنه

۱۳۵۶



د پښتو ټولنې د چاپ شوو آثارو سلسله


خطاط

روحانی رویا

د چاپ شمیر

۱۰۰۰ ټوکه

د چاپ ځای

دولتی مطبعه

* دتیر کال د چونگا بنی په میاشت کی په دوو وروستیو پیړ یو کی د پښتو دچاپ شوو آثارو د بین المللی سیمینار په مقد ما تی غونډو کی د قلندر د دیوان د متن تهیه او چا پول هم و منل شول ، دسیمینار په وروستیو غونډو کی د متن د تهیې ، نقل او مقا بلې او مقد مه کښنې کار ما ته را وسپا ر ل شو ، موږ د دیوان متن له هغې واحدې نسخې نه، چې دجمهور ی ارګ په کتابخانه کی ساتل کیږي ، برابر کړ، او دد یوان اوډهغه د ویونکی په باب خپله خیړ نه په لاندې ډول وړاندې کوو :

**قلندر :**

دقلندر په نا مه له یوولسم هجری قر ن نه تر اوسه څلور تنه شا عران په دې ژبه کی تیر شو ی دی ، چی دموضو ع د روښا نتیا لپاره به د نورو دریو په خصو ص دیوی لنډې یا دونی نـه ور وسته په خپله اصلی موضو ع پیل وکړو .

---

* دقلندر د دیوان د ځینوبرخو په تصحیح او د سر یزی د مـوا دو د بـر ابرولو او چـا پ پـه برخه کی زما فاضلو استا دانو پوهاند عبد الحی حبیبی ، پو هاند عبدالشکور رشاد ، زما ګران او محترم ملګر ی ښاغلی حبیب الله رفیع ، او زما ګران ورور عبدا لکریم پتنګ دزیری ځوان او تکړه مهتمم له ما سره مدد کړی ، ټولـو ته د زړه دکومی کور ودا نی وایم .

ددغه نامه په شا عر انوکی‌تر ټولو قدیم‌سړی دخوشحال خان ختټك(۱۰۲۲ــ ۱۱۰۰هـ ق)او دده د زوی اشر ف خــان هجری (۱۰٤٤ــ ۱۱۰٦ هـ ق)معاصر دی ، خو شحال خان دده په باب ویلی دی :

چی لاف و هی د شعـــــر نن په دا دور دی ډیــــر
خدای دی نه کا چی به وایم حا ل د دیو تیرو بیـــر
ځوك پاوی ځوك نیم پاوی قلندر پکی نیم سیر (۱)

اشرف خان هجری د دغــه‌قلندر داد بی قدر ت په باب ویلی دی :

نن په داد ور که بنــــه‌شا عران غوا ړی
که دوه دری تنه دیگر یوقلندر دی (۲)

ددغه قلندر یوه غز لـــه‌داشرف خان هجری د مطبوعه دیوان په ۹۷ ــ ۹۸ مخونوکی‌راغلی ده (۳) اشرف‌خان دده

(۱) و گوریء ! دخوشحال‌خان کلیات ۹۷٤ مخ ۰

(۲) د اشرف خان هجری‌دیوان ص ۲٤۸ ، د ۱۹۵۸ ع کال د پیښور چاپ ۰

(۳) ښاغلی حبیب اللــــه‌رفیع د همد غی غز لی پــــه استناد ددغه قلندر پیژ ندگلی‌په ادبی ستوری دوهم‌ټوك کی راوړی ده ، او په کابل مجله‌د ۱۳۵۵ ش کال ۱۱ گنــــه ۳۲ ــ ۳٤ مخو نو کی یی هم‌معرفی کړی دی ۰

ددغی غزلی په جواب کی یوه‌جوا بی غزله‌ویلی چی‌دهمدغه دیوان په (۹۹ـ ۱۰۲) مخونوکی خوندی ده .

ښاغلی دوست محمد خان‌کامل په خپل «رحمان بابا» نو می اثر کی د اشرف خان‌هجری د هغه لوړ شعر ( چی دشاعرانو یادو نه یی پکښی‌کړی ده) په استناد دغه‌قلندر درحمان بابا (۱۰۴۲ـ ۱۱۲۳ه ق) (٤) هم عصر گڼلی دی (۵) .

ښاغلی عبد الحلیم اثر دابا سین مجلی د ۱٤ کال په ۱۵۹ گڼه کی ددغه قلندرپه‌باب‌کښلی دی : « قلندر په قام یو سفزی ؤ ، په دکن کی‌اوسیده ، او په ۱۰۹۷ ه ق کال د سوات را نیزی په‌موضوع تنها نه کی په حق

---

(٤) فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د گلشن‌روه دسر یزی د۶۰مخ په‌حاشیه‌کی درحمن بابا ژوند تر۱۱۲۸ ه ق پوری گو ما نی بللی دی،او دایی کښلی دی ، په پښه خزانه کی چی د رحمان بابادمرگ کال ۱۱۱۸ ه ق‌ښوول شوی ، دازه هندسی تیروتنه‌بولم ، چی د کښنو نکو له تلواره پیښه ده .

(۵) وگوری ؛ رحمان‌بابادوست محمد خان کا مل‌ص ۳۹ د ۱۹۵۸ کال دپیښور‌چاپ .

رسیدلی دی »(٦) د «رحمان بابا شاعر انسا نیت » نومی اثر په مقدمه کی یی کښلی دی: چی قلندر خان قلندر یوسفزی د مالا کنډ ایجنسی دمو ضع تنها نه د خوانینو نه یو معز ز فرد ؤ ، په حیدرآباد دکن کی هستیده ، د ۱۱۰۰ هـ ق په شاو خوا کی خپل پلر نی ټاټوبی ته راغی ، دمرګ کال یی ور ته ۱۱۰۲هـ ق ښوولی (۷) . ښا غلی اثر په دی برخه کی یو بل ابتکار هم کړی ، چی وروسته به وخیړل شی ، ده په دغه مقدمه کی دقلندر څو شعرو نه درحمان بابا له شعرو نوسره دپر تلی لپاره راو ړی دی ، دده په راو ړل شوو شعرو نوکی یو بیت دادی :

نوی طر ز می په پښتوژبه کی او کړو
د افغان په شا عرا نو کی سلطا ن یم

دپښتو ادبی تا ریخو نواو تذکرو زموږ له مور د بحث قلندر او هغه لوړ قلندر نه په دغه مهال کی پدی نا مه

---

(٦) وګور ی ء ! ابا سین مجله ، د ١٤ کال ١٥٩ ګڼه ، ٣٤ مخ نه وروسته .

(۷) و ګوری ء ! رحمان باباشاعر انسا نیت ، د میر عبد الصمد خان ، د ښا غلی اثر مقدمه ص ٢٩ ، دوهم چاپ ١٩٧٤ .

بل شاعر په موږ نـــه دی پیژندلی ، مګر فاضل استاد پـــوهاند عبد الشکـــوررشاد عقیده لری ، چی دیو- ولسم او دولسم قرن پــــه حدودو کی پر دغو لـــوړو قلندر نوموشاعرانو سربیره بل قلندر هم دپښبور په شاوخوا لتو کی ژوند کړی دی ، وایی چی دغه قلندر په ختیه مومند- ؤ (۹).

دریم قلندر چی له «میرا» سره یی دزړه مینه درلوده ،او په پښتو تذ کرو ، ادبی آثاروار تاریخو نو کی په «اپریدی قلندر» مشهور دی ، دغه دیوان هم ددی قلندر دی ، او په دی سریزه کی موږ د همد غــه قلندر ژوند پیښبی او هنــر څیړو .

څلورم قلندر متأ خر سړی دی ، په ختیه اخکزی د سپین بو لدك او سیدو نکی ؤ ، په ۱۲۸۱ ش کی زو کړی او په ۱۳۱۱ ش په د هلی کی وفات شوی دی (۱۰).

---

(۹) فاضل استاد پو هاندرشاد ددغه قلندر آثار لید لی دی، موږ ددی مومند قلندر په باب معلو مات ددوی له خولی کښلی دی ، له دی یادو نی یی مننه کوم .

(۱۰) اوسنی لیکـوال ج ۳ ص ۱۰٦۳ ، د فاضل استاد عبدالـرؤف بینـوا ، د ۱۳٤٦ ش د کابل چاپ .

اوس مو چی د لوستونکو دذهن د روښنا نتا به لپـــاره ددغه نامه شا عرا ن لږ شـــه وپیژندل ، نو لازمه ده ، چی ددغه (دیوان خاوند قلنـــدر )دژوند او شا عری په بـــاب خپله څیړنه وکاږو :

## دقلندر نسب ، او د ژ وندزمانه :

ددغه قلندر (چی لهمیـــراسره مینه لری) په باب پـــه پښتنو مؤرخینو او تذکـــره‌کښو نکو کی تر ټولو د مخـــه لوی استاد پو هاند عبدالحی‌حبیبی په تاریخچه شعر پښتو کی کښلی دی : «قلنـــدر ازگویند گان متین و شیـــوای طبقه اوسط است ، .که غالبـــاً در عصر اورنگ زیب مغولی میزیسته ، و دارای دیـــوان‌مؤجزو کوتـــا هی است ، شمس الدین شاعر قند هاری گفته است :

قلندر و دمیرا د یـــوان‌مؤجز دی
منتخب یی څو غزل عیـــان‌د شعر (١١) .

نوموړی استاد بیا پـــه«تاریخچه سبك های اشعـــار پښتو » کی د همدغه قلنـــدردژوند زما نه له ١١٠٠ هـ ق نه وروسته ګڼلی او د مشهـــورمستشرق جیمز د ار مستتـــر

(١) وګوری ٤ ! تار یخچه‌شعر پښتو ، طلوع افغـــان ١٤ نشرا تی کال .

(۱۸٤۹ــ ۱۸۹٤) په حوا لــه یی کښلی چی دغه قلندر پــه ختېه اپریدی ؤ .(۱۲).

همدغه خبری یـــی بیا دپښتا نه شعرا ء لومړی ټوك په مقدمه کی هم را نقل کړی(۱۳) اوکله چی یی دد غــه کتاب په متن کی دیوه پښتانه شاعر په توګــه دده سوا نــح کښلی دی ، هور ی یی همدددد نسب او دژوند دزمانی پــه باب دغه خبری بیــا راو ړی دی (۱٤).

پو هاند صدیق الله رښتیــن دپښتو اد بیا تو په تاریخ کی لیکی چی : قلندر په قـــــام اپر یدی ؤ دباړی او جمرود په غاړو اوسیده ، او دحمید باباهم زما نه او دده شا ګرد ؤ (۱۵)

استاد عبد الرو ف بینــواتر پښتا نه شعرا ء وروستنه

---

۱۲) تاریخچه سبك هــا ی اشعار پښتو ، کابل کا لنــی ۱۳۱۹ ، ص ۲۱۷

(۱۳) پښتـــانــه شـــعرا ء لومړی ټوك مقد مه ، ص۳۵ــ ۳٦ ، د ۱۳۲۰ ش کال د پښتو ټولنی خپرو نه

(۱٤) همدغه اثر ص ۲٤٤ .

(۱۵) دپښتو ادب تار یخ ،ص ٦۰ د ۱۳۲۵ کـــال د پښـــتو ټولنی خپرو نه .

په پښتو نستان نو می اثر کی کښلی دی : « قلندر اپریدی د پښتو شاعرو ،او په ۱۱۵۰ کال د باړی او جمرود په شاوخوا کی اوسیده میرا نامی سره یی عشق دراود » (۱۵) .

وروسته تر دی چی د دغه دقلندر په باب لږو بر په ادبی تاریخونو او تذکروکی یادونی وینو په ټولو کی همدغه قلندر اپریدی بلل شوی ،اود ژوندزمانه یی هم همدغه حدود ټاکی .

دمثال په تو گه د ادبیات سر حد مؤلف ددغه اثر په لومړی ټوك کی دی اپر یدی بللی او د ژوند زمانه یی ورته له یوولسم قرن نه وروسته لیکلی ده (۱۷).

په افغا نستان نو می کتاب کی هم دی اپر یدی اود حمید معاصر بنو ول شوی دی(۱۸).

---

(۱٦) پښتو نستا ن ص۴۳۷ ، د ۱۳۳۰ کال چاپ .
(۱۷) ادبیات سر حد ،ج ا ، ص ۲٦۸ ، در ضیا همدانی ، د ۱۹۵۳ ع کا ل دلاهور چاپ .
(۱۸) افغانستان د آریا نادایرة المعا رف خپرو نه ، د ۱۳۳۷ کال دکابل چاپ .

په آریانا دایرة المعارف ج۳ کی هم قلندر په ختهــه اپر یدی او د حمید معاصــر بښوول شوی دی (۱۹).
د اټك کی اس پار د پښتوادب په برخه کی ملی انقلا بی شاعر ښاغلی استاد اجمــل ختك ، قلندر اپریدی ، او د خوشحال خان(۱۰۲۲ ــ۱۱۰۰ه ق) او رحمان بابا (۱۰۴۲ ۱۲۲۳ ه ق) زمــا نــی تــه دنږدی وخت شاعر بللی دی (۲۰)، ددغی مقالی په پښتــو ترجمه کی هم دغه خبره راغلی ده (۲۱).
استاد خادم په رو هـــی گلونه کی دی اپر یدی بللــی (۲۲) ښاغلی عبدالحلیم اثــر په پښتـــو ادب ۲۳) ،او د

---

(۱۹) آریانا ددیرة الــمعار ف ج ۳ ، صــ ۵۴۷ ، د ۱۳۳۷ ش کال چا پ .
(۲۰) اټك کی اس پـــارودپښتو ادب برخه ، ص ۱۲۸، طبع لاهور
(۲۱) د خپلواکی تــړو ن ،نمبر ۱۱، ص ۷۰،د ۱۳۴۲ش کال د کابل چاپ .
(۲۲) روهی گلونه ، صــ۱۱۸ ، د ۱۳۲۶ کال چاپ .
(۲۳) پښتـــو اد ب ، صــ۳۰۵ ، طبـــــع ۱۳۷۰ ه ق پیښور .

اباسین مجلی د ۱٤ کال پــه۱۵۹ گڼه کی یی د اپر یـدی قام سره د نسبی نسبت نه‌سر بیره دا هم کښلی دی ، چی قلندر اپریدی د۱۲۵۰ه ق په حدود و کبی ژ وندی ؤ (۲٤).که چیری دد غـــــه‌تاریخ په اعداد و کی چاپـــی تیرو تنه نه وی راغلی یعنی۱۱۵۰ ه ق ، په ۱۲۵۰ ه ق اوښتی نه وی ، نو سړی ته‌داشك لو یږی چی گو نــدی اثر صاحب ته به ددغه قلندرملگری «میرا» د دیار لسمـــی پیړی او لسی شاعر د جمرودکوکی خیل اپر یدی «میـــرا» (۲۵) ښکاری ،او ددغه شا عردژوند د زمانی په نسبت به یی دغه قلندر هم د ۱۲۵۰ه ق‌د شاوخوا شاعر بللی وی دا ـ رمستتر کاږی چی د دغــــه‌وروستنی میرا پلار پښتو ن او موریی ډمه وه ، ده به‌خپله‌ساز کاو ه ، او دواده په هر محفل کی به یی پنځوســـــــروپی حق الزحمه اخیستـــــه (۲٦) ،حال دا چی دقلـــندر دمحبوب «میرا» په‌باب نظر یات

(۲٤) ابا سین کراچـــی ،۱۵۹ گڼه ، له ۳٤ مخ نـــه وروسته .

(۲۵) د خیبـــــر اد ب ص٥٤ ، د ۱۹۵۸ کال دپیښور چاپ .

(۲٦) وگوری ء ! د پښتـــو نخوا د شعر ها رو بهـــــارد ادبیاتو د برخی مقد مـــه، د۱۸۸۸ ع کال د پاریس‌چاپ .

(چې وروسته به وخیړل شي ) مختلف دي ، ځینې یې د پیړی خبرې کوي ، او ځینې نورخه وایي ، او که په دغه تاریخ کې طبا عتي غلطي نه وي ، نو باید بناغلي اثر د تذکرو او ادبي تاریخو نو له مکررو یادونو سره بیره دقلندر ددغه بیت له لوست نه چې پهوارووارو په خپرو نو کې چاپ شوی ، هم دا تاریخ نه وای کښلي ، قلندر ویلي دي :

فضل د سبحان په قلندرد شعرو شو
داواړه سبب فصیح ، بلیغ ، دماشو (۲۷).

دپښتنانه شعراء د لو مړی ټوك او د تاریخچه سبك های اشعار پښتو تر خپر یدو تقریباً شل کا له ور وسته نومو ړی لوی استاد پو هاند عبدالحی په تاریخ افغا نستان در عصر کور گانیا ن کی (۲۸) بیا دقلندر د ژو ند زمانه د ۱۱۰۰ هـ ق نه وروسته ، او د حمید ماشو گگری معاصر یې گڼلی ، او نسبي ارتباط یې له اپر یدی قام سره هم کښلی دی ، او دیرش کاله وروسته یې د افغانستا ن پیښې لیك د ۱۱۵۰ هـ ق کال په واقعا تو کې د قلندر په باب کښلي دي : «قلندر اپریدی د پښتو

(۲۷) وگوری ! دقلندر دیوان ص ۱۶۶.

(۲۸) تاریخ افغانستا ن در عصر کور گا نیان هند ص ۲۸۴ ، د ۱۳۴۱ کال چاپ .

دیوان‌خاوند شاعر په خیبـر کی اوسیدی ء» (۲۹)
دغه ډول بیا پو ها نـــدصدیق الله رښتین د پښتـو
ادبیا تو تاریخ» په‌درسی متن‌کی «قلندر» اپر یدی بللی او
دژوند زمانه یی ور ته ۱۱۰۰هـ ق ښوولی ده (۳۰).
دوکتور میکنزی د پښتـونسخو په نوی کتلا ك ،دچمن
بی نظیر د معر فی په برخــه‌کی د قلندر له نامه سره‌داهم
کښلی ، چی دی اپر یدی ؤ،دحمیـد دزمانی سړیؤ اودده
شهرت له میرا ســـره دده‌د ملگر توب له امله دی (۳۱)
دتاریخ اد بیات ملسما نان‌هند و پاکستان کښو نکو هم
دی اپر یدی بللی او د ژوندزمانه یی ورته د دولسمـــی

(۲۹) دافغانستا ن پیښ‌لیك،ص ۱۵۸ ، د ۱۳۵۳ کــال چاپ .
(۳۰) د پښتو اد بیا تــوتاریخ ، درسی متن ، دقلندر برخه ، د ۱۳٤٦ کــا ل‌دپوهنتون خپرو نه .
(۳۱) دانگلستا ن په کتب‌خانو کی د پښتو نسخـــو فهر ست ص ۹٤ ، د ۱۹٦٥کال داکسفورد طبع .

پیری نیمایی بنوو لـــی ده(۳۲) . او بناغلی لیکـــو ال حبیب الله رفیع هم کله چی په ادبی ستور ی ج ۱ کی د قلندر دشعرونو لهراوړو نـهمخکی دده دژوند په زمانهخبری کړی ،هلته یی دده ژوند لـــه ۱۱۰۰ هق نهوروسته بنوولی په ختهه یی اپر یدی بللی دی(۳۳) داووهغه آثار تذ کری او تاریخونه چی د قلندر پهباب څه پکښیمو ندل کیږی، دغو تهولو دی په خته اپر یدیاو د ژوند زما نه یی ور تـــه له ۱۱۰۰ ه ق نه وروستهیاد ۱۱۵۰ ه ق شاو خوا بللیده. اوس به راشو دده خپلدیوان به وګورو ، چی هلته خـــه مو ندل کیږی .

د قلندر په د یوان کیلهکوم قام سره د نسبی ارتباط له امله هیڅ نه موندل کیږی،او داسی درایت منونکی دلیل چی هغه دی سل په سلو کیداخبره تا ئید کړی ، چـــی قلندر په خته اپر یـدی دی،دده په دیوان کی نه پیـــدا کیږی ، خو داچی د لومــړیځل لهپاره دمعرو ف مستشرق دار مستتر په حوالـــه دیاپریدی بنوول شوی ، تهولـــو ادبی تاریخونو او تذ کرودغهخبره نقل کړی ده ،او دهمدغه قلندر (چی له میرا سره مینهلری) دژوند دزمانی پهباب یی دده دخپلو دغو بیتو پـــــهاستناد :

(۳۲) تاریخ اد بیـــاتمسلما نان هند و پـاکستا ن ص ۱۰۴ ـ ۱۰۵ ،د ۱۹۷۱ عکال د لاهور طبع .

(۳۳) ادبی ستوری ج ۱ ،ص ۲۵۱، د ۱۳۵۳ چاپ .

« فضل د سجان په قلندردشعر و شو
داواړه سبب فصیح بلیــغؤ د ماشو
او بل ځای یې ویلی دی:
دپښتو ژبې په شعر پـــهداخپله زمانه کې
پری دی نښود قلندره بې‌حمیده بل حریف (٣٤)

دلته دتذکره کښونکو خبــرهسمه ده، چې قلندر دحمیدبابا (١١٤٨ ه ق ژوندی) (٣٥)دزمانی سړی دی ، اود ژوند

(٣٢) د قلندر د یوان ص٤٤

(٣٤) دحمید بابا د مرګ‌کال مستر را ورتې (١٨٢٥ـ ١٩٠٦ع ) په selections from the poetry of the Afghans ١٨٦٧ ع لندن او د پښتـــوګرامر په مقدمه (طبع ١٨٦٧ ع لنـــــد ن ) کې ١١٤٥ ه ق کال کښلــــی دی ، مګر کله چې ددغه لوی ادیب‌شرعة الا سلام را پیدا شو . دغه نظر یه با طله شـــوه، حمید شرعة الا سلام پـــه ١١٤٨ ه ق کال نظم کړی ،ددغه کتاب یوه نیمګــــــړی نسخه د پښتو ټولنی پـــه‌کتابخا نه کی شته ، دغـــه نسخه فاضل استاد پو هاندرشا د پیدا کړی وه ، اودوی خپله خیړنه پر دی اثر پـــه١٣٣٨ کال په وږمه کی‌خپره کړی ده . نو موړی مستر راورتی د ګلشن روه په مقدمه (ص ٥ طبع ١٨٦٠ هرتفرد)کی‌حمید دتیمور شاه‌معا صربللی ؤ، بیا یې دغه تیرو تنه پـه‌لوړو دوو آثارو کی‌هغه ډول کړه،چی‌د نوواسنادو په پیدا کیدوسره هغه‌هم‌باطله شوه .

زمانه یې له ۱۱۰۰ هـ ق نــه وروسته ټاکل کیږي ، مګر دا
چې دی تر کومه ژوندی ؤ ، او کله زیږ یدلی دی ، په دی
باب نه دده په خپل دیــوان کی څه شمهودی د لایل پیدا
کولای شو ، او نه تذکـــره کښونکو او مؤر خینو څـــه
ویلی دی .

دده د دیوان له دی یــوه بیته :

« د اورنګ و تخت و تاج وته به شاکه
که غمونه دخپل یار کــه تاج افسر څوك» (۳٦)

دا معلو میږی چی‌دعالمګیر او رنګ‌زیب (۱۰٦۸ـ ۱۱۱۸
هـ ق) دپا چهی په زمانه کی‌دده د شاعر ی هنګا مه خوره
وه ، نو په همدی توګه یــی دزوکړی نیټه هــم د ۱۱۰۰
هـ ق نه وړاندی باید تخمین‌شی .

**ټاټو بی ، ژوند پیښی اومړینه :**

قلندر ویلی دی :

ستا د حسن په چمن کــی‌دوه رود ونه

---

۳٦ــ وګوری ع!، د قلندردیوان ص ٤۷

له دوو سترګو زما ښاخی باړه ،جمرود (۳۷).

ددغه بیت په استنادلوی استاد پوهاند عبد الحی حبیبی په تاریخچه سبکها ی اشعار پښتو (کابل کالنی ۱۳۱۹ ، ص ۲۱۷ ) ، په پښتانه شعراء ( ج ۱ ص ۲۱۷ ، ۱۳۲۰ ) ، تاریخ افغانستان درعصر کورګانیان هند (ص ۲۸٤ ، طبع ۱۳٤۱) کی دی د باړی او جمرود درو د ونو د سوا حلو اوسیدو نکی بو لی ، خو بیا په «د افغانستان پیښی لیك» (ص ۱۵۸ ، طبع ۱۳۵۳) کی کاږی ، چی قلندر په خیبر کی اوسیده .

پوهاند صدیق الله رښتین په «دپښتو ادب تاریخ» ( ص ٦۰ ، طبع ۱۳۲۵) کی لیکی چی قلندر دباړی او جمرود په غاړو کی اوسیده ، مګر په «د پښتو ادبیاتو تاریخ» درسی متن (ص ۲ طبع ۱۳٤٦) کی یی یو ځای لیکلی دی : «قلندر دکوم ځای ؤ ؟دیو سپیڅلی محیط او پاکی خاوری ! ... دا کوم ځای دی، داهغه ځای دی چی د پیغلواو ځلمو په ستا ینو کی په لوړه تیرا یاد یږی » .

استاد عبدا لر ؤ ف بینوا په پښتو نستان نو می اثر (ص ٤۳۷ ، طبع ۱۳۳۱ )دده ټاټوبی د باړی او جمرود شما وخوا ښولی دی .

(۳۷) د قلندر دیوان ص ۲۲

په تاریخ ادبیات مسلمانان هندو پاکستان ص ۱۰۴ کی یی کښلی دی ، چی قلندر دباړی او جمرود په کنارو کی ژوند کاوه . په لوړ راوړل شوی بیت کی شاعر د خپلو او ښو تشبیه له باړی اوجمرود سره کړه ده ، څرنګه چی شاعر له خپل چاپیر یال او محیط څخه متأ ثروی ، نو دا خبره یقین ته نژدی ده ، چی سړی دا حکم وکړی ، چی دی به ددغو ځمکو هستیدونکی ؤ .

اوس چی ددغه بیت په شهادت دده ټا ټو بی تذکره کښو نکو د باړی او جمرود خوا وشا سیمی ضبط کړی ، بهتره به وی ، چی ددغوسیمو دجغرا فی مو قعیت په خصوصی کی هم څه ولیکو ، او داخبره سپینه شی چی په دغو سیمو کی کومی پښتنی تپی هستیږی .

۱ـ د باړی رود : دغه رود دمیدان باغ له چینو څخه راوځی ، ځینی معاو نین هم لری ، د باړی دری تر او بولو وروسته پیښور ته ځی ، او له ابا سین سره ګډ یږی (۳۸).

(۳۸) پښتنا نه ج ۲ ، د ۱۳۵۰ ش کال د کابل چاپ .

سید بها درشاه‌ظفر کاکاخیل کښلي دي ، چي دا پر یـــدو «قمري» تپه د باړی قبلی ته، او دا کا خیلو تپه د بـــاړی سویل نمر خاته علاقه کـــی آباد دی (۳۹).

جمرود :چی‌دخیبر په‌دره‌کی‌بهیږی داپریـــدو له غـــر و ځخه راو ځی ، د چوری او به‌هم په گډ یـــږی (۴۰)، او داپر یدیو کو کی خیله پښه دلالا چینی او جمرود نه تر علی مسجده پوری آباده ده (۴۱).دقلندر د هستو گنی دلومړنی ټاټوبی په باب او لسی‌روایات داسی دی ، چی قلندر پـــه وړکتوب کی د کند هار پـــه ښا و خوا کـــی او سیدلی ، (۴۲) په دی خصوص کـــی‌کوم تاریخی سنداو شهو دی دلیل نه شته .

دقلندر د ژوند د سطحی او طبقی په باب فو لکلور ی

---

(۳۹) پښتانه دتاریخ پـــه رڼاکی ص ۱۳۸۰ د پیښـــور چاپ .

(۴۰) پښتانه شعرا ۱ء ۲۴۴ ، لمن‌لیك، پښتونستان ص ۲۰۳ .

(۴۱) پښتانه د تاریخ پـــه‌رڼا کی ص ۱۳۸۰ .

(۴۲) پښتانه شعراء ج۱ص ۲۴۵ .

روایات دا سی دی ، چــی قلندر دیوه خان زوی ؤ (٤٣).
دغه روایت دکند هــار اوکوټي په سیمو کی نکلچیان د قلندر جان او میر ا جان نکل (٤٤) په پیل کی خپلـــــو اروېدونکو ته وایی ، د دغــو سیمو فلکلور پستانو چی دغه نکل ضبط کړی دی ، هوری‌هم دغه خبره راوړی(٤٥) که موږ له دغو روایاتو تیر شواو په عینی د لایلو اتکاء وکړو، نو مجبور یو چی دده دیوان تــه‌له مراجعی وروسته پــه دی خصوص کی خپل دلایل ارائه‌کړو .
قلندر ویلی دی :

قلندر د قناعت پر خوانچه‌ناست دی
نه یی بر نبج د چا په کاردی ،نه حلوا (٤٦)

بل ځای یی د یوی غز لی‌په مقطع کی خپل نــــوم د

---

(٤٣) ملی هینداره ،ج ۲ ،داستاد نوری مر حوم صــس ۷۸ ، طبع کابل .
(٤٤) د میرا جان او قلندرجان دنکل تحلیلی څیړنه ددغه دیوان په‌تعلیقانو کی وګوریء!
(٤٥) او لسی‌نکلونــــــه‌پروفیسور ولی محمدسیـــــال کاکړ (مسوده) .
(٤٦) د قلندر دیوان ص٦.

ذو المعنین په توگه داســـی راوړی دی :

هم په داچی قنا عت لری په کند کی
په شا هانو پوری خاندی «قلندر» (٤٧).

بل ځای وایی :

قناعت هســی دو لت دی قلندره
چی سړی که په نیستی کی توانگر (٤٨)

لـــــد غـــــه دو ل بیتـــوخـــــه بنـــــکار ی چی دی په ربنتیاهم «قلندر» سړی ؤ، او د ژوند سطح یی بنده نه وه ، مگر دده د شاعر ی لــه روح څخه دانه څرگند یږی، چی واقعاً دی دده ژوند خراب، وی دده په کلام کی دخوا صو داصطلا حاتو راو ړل، لکــه: زربفت ، مانی ،بستر ،گلعذار غلام، بادار، فانوس، مهـــر واو نور ...

سړی په دی یقینی کوی ،چی قلندر دی په ژوند کـــی آرام ؤ.

قلندر په خپل ژوند کی دمیرا په هجر کی لو لپه ، او پـــه فراق کی یی داسی مهجوردی، چی کله یی له هنده دبیر ته

(٤٧) د قلندر دیوا ن ص٦.

(٤٨) دیوا ن ص ٢٦ .

راستنیدو په مهال صد قـــیمنی ، او کله یی له غمـــه
سوات ته درو می ، قلنــدرویلیدی :

چا چی جا مو نه د مینــیچښی دی
ننگ و نا مو س یی دواړهپرا یښی دی
که هند له تللی اشنا میراشی
څو صد قی می په زړه کیایښی دی (٤٩)

بل ځای یی ویلی دی :

نصیب راو کړی چـــاری ناپسندی
دسیند په غاړه مړ شوم لهتنـــدی
که میرا راشی د هند لـــهلوری
هاله به وایم نصیب رندی(٥٠)

بیا وایی :

خوشحا لی مه کړه غم بهدی زیات شی ٠
څوك چی چو کیکه کوریی میرات شی
میرا صاحب خبر ییواخله
«قلندر »د رومی نیت یـــیدسوات شی ٠

دده په خپل دیوان کی لهدی سنده ښکاری چی قلندر
سوات ته هم تللی دغه خبر ی په او لســـی روایاتو کـــی

(٤٩) (٥٠) د ملاښا یسته‌خان خطی جونگ ٠

شته او دده په نکل کی هم ضبط دی (۵۱) . د نکل دروا یت له مخی قلندر په سوات کی مړشوی ، اوهوری ښخ دی، دپښتو ادب تاریخ مؤر خینو هم دغه قول اخیستی ده (۵۲)، مګر دمړینی نیټه یی نه ده څر ګنده ؟،د قلندر له خپل یوه بیته ښکاری ، چی دی پاخه عمر ته رسیدلی ؤ ، ده ویلی دی :

وار په وارد هر ا شنا پ‌ه‌حال خبر شوم .
را شه عمر دی تره‌یرو کالو تیر شو (۵۳)

**میرا څوك ؤ؟**

دقلندر د ژوند پیښو په‌خیر نه کی د میرا یاد و نه ، او دده په‌باب تحقیق اوخیړ نه‌دشاعر د ژوند د ځینو اړخو نو په څرګند لو کی هم بی ګټی نه دی ، علاوه له دی لوړ څو ځایه د قلندر په خپلوشعرونو کی د«میرا» نو م را غی نو ، بهتره بو لم ، چی د «میرا» په خصوص کی‌هم‌څو ټکی‌څرګند کړم :

میرا د قلندر محبوب دوست ؤ ، چی تل یی په‌غم کی ژړ یدلی ، او دهجر په‌اوریی الو ی‌شوی‌دی ، دقلندر

(۵۱) ملی هینداره ، ج ۲ ،ص ، ۸۲
(۵۲) دپښتو ا دب تاریخ‌ص ٦٠ پښتو نستان ، ص ٤٣٧ .
(۵۳) پښتانه شعراء ،ج۱،ص ۲٤۵ .

او میرا دروابطو په باب لوی‌استاد پو هاند حبیبی کاږی: «قلندر یو عاشق مشرب اومین سړی ؤ ، عشق خپـــل مسلك او مشرب ګڼی (٥٤)دی په میرانو می باندی مینؤ یا یی دا سړی پیر اومرشد ؤ(٥٥). پو هاند رښتین هــــم کټ مټ دغه نظر تأ ئید کړی‌دی (٥٦) استاد بینوا کښلــی دی : «...د «میرا» نامی سره‌یی عشق درلود ، په اکثــرو غزلو د «میرا نوم» دمعشو ق پــر ځای یا دوی » (٥٧) . د ادبیا ت سر حد مؤلف کښلی‌دی : « قلندر عشق‌مشر ب اور عاشق مزاج تها ، یه ایك‌شخص میرا پر عا شق تهاـ یه بات ابهی تك پایه تحقیق‌تك نهین بهنچ سکی که میرا خو بصورت لړ کاتها یا کویی‌در ویش ، بعضی لــو گــو ن کا خیال هی که وه ایـــــك‌در ویش تها اور قلندر کواس سبی عقیدت تهی ، لیکـــــن‌قلندر کی ایك شعــر ســـی

٥٤ــ قلندر ویلی دی :

عشق دښکلیو دین مذ هب‌دقلندر دی
نور یی مه پوښته له دینه‌له مذهبه

٥٥ــ پښتانه شعرا ء ، ۱ ــ۲٤٥

٥٦ــ دپښتو ادب تاریـــخ‌ص ٦٠

٦٧ــ پښتـــونستا ن ص٤٣٧



معلوم هو تاهی که‌میرا خوبرولو لړ کا تها» (۵۷) .

دپښتنا نه شعراء ، ددو هم‌چاپ لنډ وو نکو هم په دغه باب کښلی دی : « ... خوداپه کلکه سره نه شو و یلــی چی میرا جان څوك «پی‌مخی»ؤ ،او که‌دده پیر ؤ (۵۹) .

اولسی روایات اود نکــــل‌حکا یات هم د ادا د طرز په ډیر لږ اختلاف سره دازباتوی‌چی «میرا» د قلندر ملگر یؤ، او په مسجد کی سره ملگر ی‌شوی وو (٦۰) ،قلندر میــرا دښو اخلا قو له پلوه خو ښ‌کړی او ملگری کړی ؤ .

اوس به ډاشو د مـیــــرا په‌باب‌به څه‌نور تاریخی اسناداو سوا بق دلی وړاندی کړو.اوبیا به یی د قلندر د شعرو نو اویادونو لمخی هم‌دا موضوع‌وڅیړو ، چی قلندر «میرا » په کومه صبغه یاد کړی دی.

۱ــ داچی میرا پیر ؤ ، دهند وستان په‌ځینو تاریخو نو

۵۸ــ ا دبیات سرحد،ج ۱ص ۲٦۸ .

۵۹ــ پښتانه شـــعرا ء ،لومړی ټوك ، دوهم چـــاپ، لنډ شوی شکل ص ۱۷۷ .د۱۹٦٤ کال د پیښور چا پ

(٦۰) ملی هینداره ج۲ ، او لسی نکلونه (مسوده) .

مصری خان گلیانــی (د۱۱۲۷ه ق ژوندی )په دیوا ن کی د «میرا» په نامه یو منظــو مخط مو ندل کیږی ، چی دی دیوه عار ف او بزرگ په نامه‌یادو ی ، مصری ویلی دی:

فقیران دی په درسن میــــرامیــرا کا
د میرا صا حب و لور ی‌ته‌رهبر شه
مړ نی د میرا سور ی پــه‌دادور
دخسته «مصر» په مـــــخ‌د بلا سپرشه (٦١).

عبدالحلیم اثر افغانی دابیا ت‌مسلمانان هندو پاکستا ن د «میرا» دیادړنی په برخه کی‌یواختلافی نوټ وړاندی کــړ ی او کښلی یی دی :چی د میرااصلی نوم میر فیض الله دی، چی د قلندر یو سفـــزی( دخوشحال معاصر ) پیر طریقت ؤ، قلندر د هغه په یا دوېـــرشعرونه ویلی دی ، دقلندر له مړینی وروسته میرفیض الله(میرا) سوات ته دده د فاتحی لپاره راغی، او دی هم دلته‌مړشو ، دقلندر او میــرا دواړو قـــبـــر و نـــه پـــه سو ا ت‌کـــی ښنـــگ پهْ ښنـــگ د ی (٦٢). درحمان بابا شا عـــرانسانیت په مقد مه کی یی‌بیا دهمدغه قلندر (یوسفزی) پــه‌یادونه کی داسی کښلی دی :

(٦١) دمصری خان‌گگیا نی‌دیوان ص ٥٩،د ١٩٥٩ ع کال د پیښبور چاپ .

(٦٢) ادبیات مسلما نـــا ن‌هندوپاکستان ،ص ١٠٦ ، د عبدا لحیلم اثر ا ختلافی نوټه.

«حیدر آباد دکن کی میـــــرا سادات کی حضرت میرفیض الله قا د ری کی مریدتهی، اوراپنی پیرسی آپ کی محبت نی اس قدر شدت ا ختیار کـــی تهی ، که حضرت میرانـــــی قلندر کی نی محبوب کی شکل اختیار کی ، یهان تك کی قلندر نی، اپنی پرسوز اشعار میـن تخلص هی «میرا قلندر» باند هاهی»(٦٢).

دښاغلی اثر په دغـو دوونظریو کی داستدلال خــــــه ضعفونه لیدل کیږی ، او دی‌به دی‌برخه کی برسیره بردی چی ماخذ نه ښیی ،کوم درایت‌منونکی معقول دلیل او سندهم نه‌لری .

اثر صا حب پخپله پـــــه‌وروستی لیکنه کی ددغه قلندر چی ده یـوسفـزی گـڼلـی ،اوبیایی د میرا د عشق نسبت هم‌ورسره کړی ، د۱۱۰۲ هق‌مړبولی ، دا خبره به‌یوخـــه منطق ولری ،اوگومان ته‌به هم‌نژدی وی ځکه دغه قلندر خود خوشحال خان اواشرف خا نهجری معاصر ؤ، کیدای‌شی د خوشحال له مړینی دی دوه‌کاله وروسته او د هجری لـــه مړینی دی خلور کاله د مخـــه‌مړوی ، مگر دا خبره به ښکه کیږی ، هغه قلندر چی‌له میراسره مینه‌لری ،او دپښتو ادب

(٦٣) رحمان بابا شا عـــرانسانیت ص ۲۹.

پەخیړنو کیپه اپریدی قلنـــدرمشهور دی ، دحمیدبابا(۱۱٤۸ ه ق ژوندی ) شاگرد ی منی،اوپه دی دیوان کی یی‌دوه ځایه دی خبری ته اشاره کړی ده .که داثر صاحب خبری درستی وی ، نو دغه دیوان به هم‌دهغه‌قدیم قلندر وی ، او شل‌ئیرش کاله له مړینی‌وروسته به بیاژوندی شوی‌وی ، او دغـــــه شعرونه به‌یی ویلی وی ؟ په‌هر صورت داثر خبری کوم قوی لاسوند نه‌لری .

دمیرا په باب دا خو یادونی‌ضرور وی چی و مو کړی ، ځینـــی محقـقـیـــن یـــی‌روابطله قلندر سره دمینی اوځینی‌یی دپیری او مریدی تابع گڼی ،قلندر په خپله وایی:

میرا می پیر دی زه یـــــی‌مریدیم

البته دده له دغی یا دونی‌به‌سړی سل په‌سلو کی دا حکم وکړی، چی قلندر د میرا پیرؤ مگر په دیوان کی یی خـــه داسی یادونی شته ، چی له ده‌سره‌یی له سوزندی مینــــی رازین یدلی دی ، ده ویلی دی:

مه گوره بی خطه قلندره‌یارومخ ته

بی توروړندیږی ، چی خوك‌گوری په‌کاغذ (٦٣) .

(ديوان ص ٢٤).

ستا دشونډو له فرا قه می‌زړه تریخ دی
دقلندر په خوله میراتړه‌شکر نه‌کړی

(ديوا ن ص ١٣٧)

دمیر په شونډو تور خال‌دی‌دمبشکو
«قلندره» که‌پر گلو ناست‌دی زاغ

(ديوان ص ٤٢)

تر زنی تیری دزلفو څو کــی‌دی
تر گل‌ختلی دبورا نـــو کـــی د ی
دا قــلنــدر د میرا صفــت‌که
که په‌چمن کی دبورا کوکــی دی
ستا د مخ په گنج کی ا ی‌میراصاحب
تم تما م کړ «قلندر»گرداب‌دعشق

(ديوان ص ٤٦)

---

(٦٤) دغه بیت په پښتنا نه‌شعراء، ادبیات سرحد،او نورو کی داسی ضبط دی :

مه گوره بی خطه‌قلندره‌دیارمخ ته
بی‌تورو ړندیږی چی څوك‌گوری وکاغذ ته .

نوری حتی تردی زیا تـی‌داسی نمونی دده په دیوا ن
کی موندلی کیږی ، چی دمیرااو قلندر مینه دنوروتمایلا تو
تابع کوی ، په هر صورت دامینه پاکه اوبی الایشه مینه‌وه،
دپښتو ا دب محققینو هم دغه‌نظر تائید کـړی دی (٦٥) دا
خبره باید هیره‌نه‌شی ،چـــی‌لوړی نمونی موږ ددی لپاره نه
دی راو ړی ، چی گوندی موږدا هغه‌کوو ،چی دقلنــدر او
میرا د مینی چوکاټ دپیر ی‌اومریدی په‌سلسله کی کور ټ
ونه منو، ځکه په پارسی ادب‌کی شعراءوو شا هانـو، او
پیرانو ته داسی الـــفا ظ اوکلمات استعمال کـړی دی .
چی د هجر په ا و ر ســـوی‌لولپه شاعر به‌یی‌حتی خپلــی
معشوقی ته استعمال نه کړی(٦٦).زیات امکان شته چـــی
دمیرا او قلندر مینه دی‌دپیری‌او مریدی له مخی وی،ځکه په
دی خصوص کی خه دلایل هم‌وړ اندی شــــــــو ل او
د مصری خان گگیانی یادو نـه د میرا دپیری په برخه کی
مهم سنددی .او دمصری خا ن‌ددیوا ن مقد مه کښنو نـکـی د

---

(٦٥) پوهاند رښـــتین ، دپښتو ا دبیاتو تاریخ،١٣٤٦ ،
دپو هنتو ن چاپ .
(٦٦) په‌دی برخه کی دبحث‌د طوالت د مخنیــو ی غرض د
نمونو له راوړو صرف‌نظـــروشو .

مقد می په ۲۹ مخ کی دغـــه یادونه د همدغه «میرا ، گنهی ،
او د پښتو دشاعر په‌تو گه‌یی‌ښیی . د میرا دشاعری په باب
هم‌اسناد په‌لاس کی‌دی، هغه‌ځلوریزی چی‌په نکل کی‌دمیرا
په نامه راغلی دی . دهغو پـه‌استناد په‌پښتانه شعــــرا ء
۱ ر۲۵۳ کی ، او په‌تاریخ‌ادبیات‌مسلمانان پاکستا ن و هندص
۱۰۶ کی دپښتو شاعر په‌تو گه‌معرفی شوی دی .

پښتانــه شعــراء (ج۱، ص۲٤٦) کاږی چی‌د قلندرترمړینی
وروسته میرا سوات ته راغی،او د قلندر پر مزار داسی ناره
کوی:

دسوا ت په‌سر کی ز مـادلبر دی
دی په ښایست کی شمس‌وقمر دی
یارانو راشیء کی دیـد نکاندیء
دیار دیدن وی ، حج اکبــردی .

او په(ص۲٥٤) کی لیکی چی‌میراهم‌دمینی په‌جذب‌او کشش
کی مړی او قلندرسره یو ځای‌ښخیږی ، دملی هینداری(ج۲ـ
ص۸۲) دنکل روایت هم دغسی‌دی ،چی میرا دقلندر تر مړینی
وروسته سوا ت ته راغلی ؤ،اود قلندر په فراق کی مړدی،
داولسی نکلونه مؤ لف ددغـه‌اثر په (ص۳۸) کی دمیرامړینه
تر قلندر وروسته بولی ،مگــر د قلندر دغه ځلوریزه :

نن د اجـــل دسپرو غــږدی
غږدمرگی می دیار ترغـوږ دی

زه قلـــنـد ر یی له هجـره‌ومر م
چی‌میرالاپشو داغــږ پـه زوږ دی

(دیوان ص۱٦٤_۱٦٥)سږی‌ته دا شك پیداکوی‌چی دقلندر مړینه دی ترمیرا دمخه وبولی.

دمیر او قلندر د مینی پـه‌خیر مینی دنورو ژبوپه‌ادبیاتو کی منعکسی شوی دی، پـــه‌پنجابی ا دب کی دشاد حسین (۱٥۳۹_ ۱٥۹۹) او مادهولال‌برهمن مینه هم (٦٦) د قلندر او میرا د مینی‌په شان ده .

همدارنگه په‌پارسی ، ادب‌کی‌د مولانا جلا الدین بلخی، ا و شمس تبریزی له‌روابطو هـم‌ددغه ډول مینی بوی را خیږی . (٦٧)

**دقلندر دیــوان ، او دهغـه‌شاعری:**

قلندر دشعر یومؤجز دیوان‌لری ، چی ټول ترزرو بیتــو پوری رسیږی ، په دی دیوا ن‌کی ۱۱٤بدلی، ٤۸ څلوریز ی او ۱٤ ټوټی شته ، په‌زیاترو

(٦٦) پنجابــی ا دب، ص۲۸۸_۲۸۹ ،طبع ۱۹۷۱لاهور.
(٦٧) آریانا مجله ، مولاناوشمس تبریزی ،راشه گوفن، شماره ۲۹۹ ،ص ۳۳۱_۳۳۸.شماره ۲٦۰، ص ۳۷۱_۳۸۰.

شعرونو کې یې د خپل محبوب«میرا» نوم هم له ځان سره راوړی دی.

کله چې موږ د قلندر پرشاعرۍ څه وایو ،نو تر ټولو د مخه دا خبره تر مخه کیږي،موږ باید دقلندر پرشاعرۍ - د هغه وخت دسیاسي اواجتماعي اوضاعو او شرایطو په رڼا کې او دو خت دا دبې جریان دتقاضو او غوښتنو تر اغیز لاندې څه ووایو - لکه څنگه چې وړه داخبره زیاته شوه ، د قلندر د زوکړې نیټه خو له ۱۱۰۰ ه ق نه د مخه او د ژوند زمانه یې له ۱۱۰۰ ه ق نه راوروسته ان ددولسمې پیړۍ ترلومړۍ نیمایي پورې هم اټکل کیږي. نو په سیاسي لحاظ دغه وخت پښتني سیمې دگورگاني حکمرانانو تر نفوذ لاندې وې،اوگورگاني خونخواري لښکرې او امراء چې به له هندوستانه کابل ته تللې،له هغې لارې تیریدونې وو، چې دپښتنو ادب دتاریخ محققینوددقلندر ټاټوبی گڼلی ،توریالیو پښتنو به تل ددغولښکرو سره لاس اوپنجې نرمولی خو گورگاني حکامو او لښکرو به دمختلفو پښتني سیمو دایل کولو، تر ټلو او سرکو بولو لپاره دهر ډول حیلو او نیرنگو نو

نه کار ا خیست (٦٨). او د پښتنولوټهاوځپل‌یی‌سترهدفو.
په ادبی لحا ظ داوخت پښتوغزل دپارسی ادب په تقلید په عشقی مو هو موخیالاتو کـی‌تباه شو ی ؤ ، د پښتو ادب دتاریخ محققین په دی خصوص کی کاری چی :شاعر به په‌ځپل ذهن کی دعشق یوه مو هومه‌دنیا فرضو له، او د هغی پـه بیان کی به‌یی ډول ډول خیال‌بافی کوله، د غزل ډیره حصه دمعشوقو دوریځو ، اوسترگوتوصیفونه وو ،اوپه دی کی به داسی مبالغه ا میزه شعرونه‌ویل کیده ،چی تل‌به درواغجن شاعر دسترگو په‌گولیوه یشتلی‌یابه دبڼو په غشو ژوبل شوی ؤ، دی به د هجران په اور کی‌لولپه‌ؤ، مگر هیځکله داونـــه لیدل شوه ، چی دی دی‌حقیقتاًدژوند له‌یوه‌جزوی نعمت څخه محرو م شوی وی (٦٩) .
دقلندر دا دبی ایجا داتـ‌ووخت هم د همدغه ډول‌سیاسی

(٦٨) ددغو د پیښودتفصیل‌لپاره علاوه پـر نورو ماخذو، تاریخ مرصع، دافضل خـا ن‌ختټك، (طبع١٩٧٤) تاریـــخ افغانستان د بیلیو طبع ١٩٣٠دی پتهانز دسر او لف کیرو، طبع ١٩٧٦، افغانستا ن‌درعهدکورگا نیان (طبع١٩٤١) . ته رجوع وکړیء .

(٦٩) وگوریء د پښتوادب‌تاریخ ،٤ جز،، دلوی استـاد پو هاند حبیبی .

اجتماعی او ا دبی اوضاعو اوشرایطو تابع دی د ده د ذیوان مطالعه خرگندوی ، چی ده هم لکه د هغه‌و خت دنورو سـل گونو شاعرانو په څیر دوخت سیاسی او ضاع او اجتماعی کړنی ډیری لږ په خپل شعرکی رانغښتی دی ، دی د خپل محبوب په مینه کی ډوب اوپه‌هجرکی یی ستی دی ،اوتل یی په غمونو کی فریاد کوی، ده‌ویلی دی:

چی سحر سحر فریا دکړی قلندره
بلبلانو تعلیم وا خیست ستاله صوته (۷۰)

بیاوایی :

نه‌کوی داروزما د زړه دزخم ولی
دم په دم زیاتیږی دغـــه‌زخم ا ماس
سورگریوا ن په وینو زه‌دخپلو وینو ناست یم
زړه زماپه مثل گویاډکدو ینوطاس (۷۱)

دغه ډول که‌دده ټول غزلیات،خلوریزی او ټوټی و گورود مهجوری او فرا ق پـه اوښویی تل گریوا ن لوند دی، اود خپل مین په غم کی تل ژړا نـد ښکاری .

---

(۷۰) د قلندر دیـوا ن ص۷۳ .
(۷۱) دیوا ن ص ۳۲ .

قلندر لیریك شاعـر (۷۲)دی ، او دی ددغه ژانر دعمومی خصو صیاتو په‌رڼا کی خپـل درونی احساسات اوهیجانات په‌ډیر جذباتی فـــور م کی‌وړاندی کوی، اودخپل‌معشوق او خلکو د زړه سوی دجلبولولپاره دخپل شعر د ژبی پـه دا خلی جوړښت کی‌ډیر تمثیلی‌امکانات مهیا کوی ، لکه ځنګه لوړو ویـل شول ، د قلندر دشاعری ټوله او که‌نه وی ډیره برخه دعشقی مو ضوعونـــو اظهارته‌وقف‌ده،مګر څرنګه‌چی دوخت شر ا یط او سیاسی اواجتماعی اوضاع او احوال هم په‌شاعر څه تاثیر پرلری، نوخو داګاه اویانا خود آګاه هغه موضوعات په‌خپلو شعر و نوکی راوړی .

ده هم یو ځای نیم ، دعشقـی‌موضوعونو داظهار په وخت‌کی دوخت دمسلط حـاکـم نظـا مخونخواری او چپاول ګری هم یادی کړی دی ،، قلند ر یـوځای ویلی دی :

چی سبا ته دی مغل په‌خو نه‌خیژی

له مطاعه دی نن خو نه‌کـه‌وزګاره

د لـیریـکو شعر و نـــوتر ځنګه اویاهم په‌لیریك شعر کی دلوړبیت په شان د ځینوپیښو او اجتماعی مو ضوعاتو دانعکاس دده په شعرو نو کی‌لیدل کیږ ی .

---

(۷۲) دلیریك شاعـــری‌دخصوصیاتو لپاره وګوریء ! زیری ، رحمان نمبر ، ۱۳۵٦، دپو هنمل طاهر علمی مقاله.

قلندر کله کله اجتماعـــــــی مو ضوعات هم په خپل شعر کی رانغاړی او یونیم دا سیغزل یی په دیوان کی مو ندل کیږی ،چی هغه وخت داجتماعځینو ناو ړو ته پکی اشاره شوی او دا سړی په دی یقینی کوی، که قلندر لهیوی خوا د خپل معشوق په غمونو او هجرا نکی مهجور ؤ، نو له بلی خوایی اجتماعی اوضاع او د ټولنـــی درونی روشونه هم له نظره نه غورځول ، دموضوع دروښانتیالپاره به دده له دیوانه یومثال وړاندی کو :

څو ماهی دچاپه پو ر ته ځی بلنده
هو مره بنکته ورته کیږ ی لویه کنده
غلط مه شه د فلك په شنه کندونه
په خر قه کی گرځوی هزار کمنده
خر خوی هزار دیناره پـه کودړی
چی ا مید که گدا یان لـــه دولت منده
دادنیا په مثال غول بیـــابانیده
هسی مه درو مه هوښیاره خر د منده
طامع مه شه دفلك وسرمایی ته
همیشه به سر گردا نیی لکه ژرنده
دشاهـــانو له ز ر بـــفتـــو خلعتونو
زما خوښه ده خرقه پهسل پیونده

د میرا په درهیچیری قد مه‌رده
ستا چی نه‌زده قلنـــدره‌خوشامنده (۷۳).

په دی لوړه غزله کی چی‌تاسی ولوسته، پرته‌له خلوزم بیته چی د دنیا دنفـی (۷٤)مفهوم تری افا ده کیږی ، پـه نورو کی یی له خپل طرز فکراودوخت له مو جودو ذهنی او عینی شرایطو سره‌ځینی‌خبری‌کړی دی، چی سړی ورته یـو څه فکری ارزښت ورکـو لای‌شی . اخلاقی اومذهبی وینااوی چی دقلندر د عصر دشاعر ی‌یوه مهمه ځانګړنه ده ، دده‌په هنر کی ځان نه څرګندوی ،او لکه دو خت دسیاسی حالاتو بیانوونی چی‌یونیم ځای‌کړیدی، دغسی ا خلاقی او مذهبی او صوفیانه ویناوی ډیر لږ دده‌په‌تغزلاتو کی‌وینو ، موضو عـی ابتکار دده په‌شعر کی نشتـــه،او د وخت دشاعری معمـول مو ضوعات ده هم په خپل‌شعر کی‌راو ړی دی . ددیوان‌مطالعه یی څرګنـدوی ،چی دمعاصـرواو ده ته دلږوړلنډو تیروشوو

(۷۳) د قلندر دیوا ن ص۸۰ـ۸۱ .

(۷٤) د قلندر په دیوا ن‌کی‌کی ځینی ډیر داسی تعا بیـر لیدل کیږی ، چی‌دژوند اودنیانفی ځینی مرادیږ ی ، دژوند او دنیا دنفی د فلسفی لپار ه‌وګوری‌ء د جبر او اختیـــار دیالکتیک ، دوهم چاپ،مقدمه،د۱۳۵۳ کال چا پ .

پښتنو شعراوو آثار یې مطالعه کړي ، او د هغو اثرات یې په غزلیاتو کې ښکاره څرګندېږي، عمو مي معلو مات یې ډیر قوي نه دي ، په غزلیاتو کې چې ځینې مذهبي، او صوفیانه خبرې اویا ځینې روایا ت راوړي، هغه په علمي اساسونو بنا نه دي ، بلکه زیاتره یې روایتي جنبه لري ، او په هغو معلو ماتو اتکاء کوي ، چې په عا م او لس کې خواره دي. ادبي فنون ، فصاحت ، بلاغت، لفظي او معنوي صنایع او ښیګڼې، له ځنګه چې د هغه وخت په فن کې د مهارت نښه ګڼل کیده (۷۵) ، دقلندر کلام هم د غه ډول مزایا لري ، مګر موږ به دلته د موضوع داوږ دوالي د مخنیوي لپاره د نمونو له راوړ ځان وژغورو . سربېره پر دغوادبي مزایاوو، ځینې فني نیمګړتیاوې هم دده په کلام کې محسوسې دي ، لکه د قا فیې عیوب او نور.....

**ادبي لار :**

کله چې لوی استاد پو هاند عبدالحی حبیبي په ۱۳۱۹ ش کال د «تاریخچه سبکهای اشعار پښتو» رساله لیکله ، نو هورې یې قلندر په غز لیاتو کې د حمید د سبك پیروو ګانه ، او دا یې هم ولیکل چې د غه شاعـــر ځانته جلا سبك هم لري، د غه

(۷۵) دیوا ن مصري خان، مقد مه ،ص ۵۷ .

خبري یي بیا دپښتانه شعراءدلومړی ټوك په مقد مه کی هم راوړی (۷٦) او رو ستیـــــو محققینو چی دقلندر په‌شاعری خه‌لیکلی دی، هغوی هم دی‌دحمید بابا پیرو اوشاگردگڼلی دی (۷۷).

قلندر سره له دی چی پـه خپل دیوا ن کی‌پر ته له‌حمیده دبل پښتانه شاعر یادونه نه کوی، اوپه‌شاعرانه تصلف کی داسی وایی :

دپښتو ژبی‌په‌شعر په‌داخپله‌زمانه‌کی
پری دی نښو د قلندره بی‌حمیده بل حریف

بل ځـا ی د حمید له اد بـی فیضه په استفادی داســـــی معترف دی :

فضل د سبحان په قلندردشعروشو
داواړه سبب فصیح بلیغۀ د ماشو

مگر که سړی دده دیوا ن په‌غورسره وگوری ، او ورسره دپښتو دنورو شاعرانو پـــه‌دیوانونو کی هم مطالعه ولری، نوله ورایه به‌ورته ښرگنـــده شی ، چی‌په غزلیاتو کی‌قلندر نه یوازی دحمید له مکتبه فن اوفکره متاثر ښکاری، بلکه د

(۷٦) تاریخچه سبکهـــا ی اشعار ، پښتو ،ص ۲۱۸، پښتانه شعراء مقد مه ،ص ۳٦ .

(۷۷) دپښتو ا دب تاریـــخ ص ٦۰ .

نورو پښتنو شاعرانو اثر هم پری ډیر زیات دی ،له چایــی فکر ،له چایی مضمون او لـــه‌چایی داداطرزاخیستی دی،اود خپل شعر کالب کی‌یی اچولی‌دی.په‌دی‌خصوص‌کی لازمه‌ده‌چی یوه مقایسی خیر نه‌وړاندی‌کو،اوداخبره به زباته کړو ، چی قلندر له چا څخه متاثر دی ،دنمونو په‌راوړو کی‌په‌یوه‌یادوو بیتونو اکتفا کوو ،اشرف‌خان هجری (١٠٤٤ـ١١٠٦ هـ ق) ویلی‌دی :

هر گزمه شه ستاله حبـــه‌زړه‌ز ماسر د
لکه نه‌شه له جورونوخاطرستاسر د (٧٨)

قلندر ویلی دی :

څوچه نه شی ستا له مینی‌زړه زماسرد
ستا خاطر به‌هرگز نه‌شی‌له‌ژړا سرد (٧٩) .

په دی دواړو نمونو کی فکریودی ، فقط دکلماتو او داداپه طرز کی‌یو څه توپیر لیـــدل‌کیږی .

عبدالقادر خان ختك(١٠٦٣ـ١١٢٥ هـ ق)ویلی‌دی.

چی‌پری غم غلطوم‌محرم‌دری‌دی

(٧٨) داشرف خان هجر ی‌دیوان،ص ٤١، د ١٩٥٨ ع‌کال دپیښور چا پ .

(٧٩) د قلندر دیوا ن،ص٢١.

يو قلم ، دو هم كتاب،دريم اشعار خپل (۸۰)
قلندر ويلي دي:
چې پرې غم غلطاوه شي هغه درې دي
يوقلم، دويم بياض، دريم اشعار دي (۸۱)
وګورئ ! چې په دې ځای کې قلندرفكر او مضمو ن ټولــه له عبدا لقادر خان خټكه اخيستى دى .
رحمان بابا (۱۰۴۲ــ۱۱۲۳ھ ق) ويلي دي :
ستا له غمه مي په سر کې هسې شور دی
ګويا ميشت مي په سر ښهر دلاهور دی (۸۲)
قلندر ددغه بيت مفاهيم داسې راوړي دي :
ستا چشمانو مي په سر کې هسې شور کړ
ګويا روان مي په دا شور سره لاهور کړ (۸۳)
څرنګه چې قلند په خپله دحميد په استادى قايل، او د پښتو ادب محققين هم دې دحميد بابا د مكتبه فكر نه متاثر ګڼي، نو د حميد تاثير دده په ډېرو غز ليا تو ليده كيږ ي،

(۸۰) د عبدا لقادر خټــك ديوان ، دلوى استاد پو هاند عبدالحى حبيبى په سريزه د۱۳۱۸ كال د كند هار چاپ.
(۸۱) ديوا ن قلندر ، ص۱۲٦ .
(۸۲) در حمان بابا ديوان.دپښتو اكيډيمى د ۱۹٦۳ع كال خپرو نه ص ۲۵۷ .
(۸۳) د قلندر ديــوان ص۲۹.

موږ د ډیرو مثالو له راوړو ،تیر یږو د نورو په شان ،دیوه بیت په مقایسې بسنه کوو،حمید بابا (۱۱۴۸ ه ق پوری ژوندی ) ویلی دی :

څکه زه کوم اسره د یاروخط ته
اسانیږی مشکل متن پـه حاشو(۸۴)

قلندر د غه مضمو ن داسې‌اخیستی دی :

درست مطلب مونده شی‌له‌کوتاهه عبار ته
تل متن مشکل گوره حــــل کیږی ، له حا شېو (۸۵).

په دی‌تو گه دځینــو نورو پښتنو شا عرانو تا ثیرات یــې هم په کلام څر گند دی .

په غزلیاتو کې ،لکه څنگه‌چې لوړ تاسې ولیدل، قلندرد حمید اونورو پښتنو شاعرانونه متأثربنکاری ، مگرپه‌ټوټوا‌و خلوریزو کې دی، دیوه ځانته‌سبك موجد او را ایستو نکې دی ، چې‌لوی استا د پو هاندحبیبی یې د سبك خصوصیات او مزایا داسې شمیری :

(۱) قلندر د خپل خوږ منزړه مجروح احساسا ت پخپلو ناړو او غلبلو کې په ښمه ډول‌راوستلی دی ، چې دسړی‌زړه ورسوځی، او داسې اغیزه‌لری،لکه‌شاعر چې د خپل خوږ من

(۸۴)درو مرجان ،ص ۷۳ .
(۸۵) د قلندر دیوا ن ص۶۵.

زړه توتې پخپلو اشعارو کې پټې کړي وې، په پښتو شعر کې دده په راز تند جـــذبات او احساسات چانـه دي ښکاره کړي .

(۲) قلندر د خپلو ویرجنواو غلبلو دپاره یو مخصو ص سبك او بحر تاکلی دی ، چې په ملي سوزا ن لحن وایـــه شي (۸٦) هسې چې قلندر له نورو ا خیستنی کړي ، او یاد نورو په پله روان شـوی دی،دغه ډول وروستیو ځینـــو پښتنو شاعرانو دده پیروي هم کړي، او له ده یې ا خیستنـی کړي دي .

دقلندرله پیروانو څخه یو هم ملاحسن (۱۱۷۷ــ ۱۲٤٥ هـ ق) تلو کاني دی (۸۷)ملاحسن په خپلو څلوریزو کې فکر او مضمو ن له قلندره ا خیستی،او په هماغه قو ت او جذب یې بیان کړي دي ،لاندې به ددغودواړو شاعرانو د کلام بولګې ولیکو، او اثرات به یې یوپربل وښیو ،قلندر ویلي دي :

دسحر با ده خوشبوي نسیمه
سلام مې یوسه دیار ترسیمه

---

(۸٦) تاریخچه سبکـها ی اشعار پښتو ص ۲۱۸، پښتانه شعراء مقد مه ،ص ۳٦ .

(۸۷) د ملاحسن تلو کاني سوانح په پښتانه شـــعرا ء ۲ ر ۳۹۲ــ ٤٠١ مخو نو کې راغلي دي .

پس له سلامه داورتـــه‌عرض کړه
هزار سلامه تیرســـــو تعظیمه
له‌خلقه گو بنی کنار ه‌خوبش یم
ځیگر ورزلی سینه دوه‌نیمه (٨٨)

ملا حسن تلو کانی دغـــه مضمون په هماغه قوت‌په‌دی خلوریزه کی داســی راو ړی‌دی :

دسهار با ده خوشبـــونسیمه
احوال می یوسه د یارترسیمه
ورته می عرض که‌دخدای‌دپاره
په صورت ایری شوم‌په‌زړه دوه‌نیمه (٨٩) .

د حاجی جمعه بارکــز ی ددیوان مطالعه ثرگندو ی ،چی په ده هــم د قلنــدر دسوزیدونکو شعرو نو اثر شو ی دی

---

(٨٨) ا دبی سنو ز ی ج ١ر٢٦٣
(٨٩) پښتانــه شعـــرا ٤ر٢٩٩ د ملاحسن تلو کانی ثو پښتونور شعرونه په یوه‌مجمو عه کی د ښاغلی محمــد حلیم سلیمی په کتب خا نه‌کی‌ساتل کیږی (پښتو خطـــی نسخی، دښاغلی محتر م‌رفیع،مسوده ) پښتو مناجاتو نه‌یی دکند هاری تاجرانو له خــواپه لاهورکی دنورو شاعرانو له دغه ډول نظمونو سره چا پ‌شوی دی .

،حاجی جمعه ویلی دی :

دده پرسیمه ورســـــه نسیمه
دعاسلام بهوربانــدیوایی
پس له سلام داورتـــهعرض کړه
لابه ترکو مه له ما جلایی (۹۰)

ددغه شعر مضمون دقلندرله لوړ شعر سره یودی ۰ ســـر بیر ه پــر دی ځینــونورو شاعرانو هم له قلنــدره اخیستنی کړی دی ، دمثـــاللپاره پیر محمد کاکــړ(۱۲۱٦ ه ق ژوندی ) (۹۱) سرهلهدیچیدنورو شاعرانو ترڅنگهدده نوم نه اخلی (۹۲)، مگر پهځینو غزلو کییی دقلندردشعر دجذب او شور اغیزی لید لیکیږی، د مثال لپاره دپیرمحمد دمطبوع دیــوانډ ٦٤ مخ ۳غزله، او د٦٥ مخ دو همـــه غزله د قلندر دشعر اغیز یلری ۰

(۹۰) دجمعه خطی دیوان ۰

(۹۱) داخبره تر اوسه څانهوه کړی ،چی پیر محمدکاکړ دی له قلندر نه اخذ کړی وی،ښاغلی محترم رفیعد معرفـــة الافغانی په مقدمهکی دغه خبرهدمثالو په راوړلو زباته کړه.د دتفصیل لپارهوگوریء! معرفت الافغانیدریمچاپ، مقدمه ص ۱٥

(۹۲)ــ وگوریء دپیرمحمدکاکړ دیوان، ص ٤۲ داستـــاد بینوا سریزه، پښتو ټولنـــه۱۳۲٥ ۰

## ادبی شهرت:

قلندر د خپل خپاند شعری استعداد، او له میراسره دمینی له پلوه دپښتونخوا په ادبی حلقو کی شهرت پیداکړی ، البته ځینو شاعرانو ته یی چی دیوان او اشعار معلوم وو، او یا ځینی چی یی له میراسره دسوزندی مینی نه خبر وو، نودوی په خپلو شعرونو کی دده یادونه کړی ده ، دپښتو قدیمو شعراؤ خوشحال خان (۱۰۲۲ ـ ۱۱۰۰ ه ق) او اشرف خان هجری (۱۰۴۴ ـ ۱۱۰۶ ه ق) چی کوم قلندر یادکړی ، هغه خو مو ،لکه څنګه چی د مخه وو یل قلندر یوسفزی (۱۱۰۲ ه ق مړ) دی ، ددولسمی او دیا رلسمی پیړی په شاعرانو کی ځینو دقلندر یادونه کړی، مګرموږ دلته هغه یادونی دده بولو چی دده له نامه سره یی جوخت «میرا» هم یادکړی دی، او هغه چی دغه قید نه لری په احتیاطی قیدیی راوړو ، بنایی دی وی ، او بنایی هغه نور قلندر نومی شاعران چی د مخه یی یادونه وشوه .

علی خان هشنغری (۱۱۸۰ ه ق ژوندی ) ویلی دی :

قلندر سوات ته شړی له ارته هنده
خومره ډیرشوی دمیرا دحسن نازه (۹۳)

(۹۳) دعلی خان دیوان ص ۳۸، د ۱۹۵۱ کال دپیښبور چاپ .

شمس الدین کاکړ (۱۲۳۸هق ژوندی) ویلی دی :

قلندر و د میرا دیوان مؤجزدی
منتخب یی څو غزل دیوان دشعر (۹٤)

حاجی جمعه بارکزی(۱۲۵۹ه ق مړ) دزړو عاشقانو پـــه سلسله کی د«میرا» او «قلندر»یادونه راسی کړی ده .

د میرا له غمه تــــــل خوار
قنلـــــدر ؤ ســــــرنگون (۹۵)

همدا ډول دبیدل په دیوان او داحمدی صاحبزاده په آثارو کی دقلندر، په نا مه یو شاعر یادشوی ، خو لکه څنگه چـــی دمیرا یادونه یی نه ده کړی، موږ یی دلی راوړو، مگر باوری نه یو، چی همدا قلندر به وی او کـــه هغه نور .

بیدل دتیمور شاه درانـــی(۱۱۸٦ ـ۱۲۰۷ ه ق) معاصر ویلی دی :

قلندر ، عبدالحمید، خواجه محمد دی

---

۹٤ـ دشمس الدین کاکړدیوان ،ص ٤۱، د۱۳۳۳ کال د کابل چاپ .

۹۵ـ دحاجی جمعه بارکزی خطی دیوا ن، داطلاعاتـــو او کلتور وزار ت د خطی کتـــب خانی نسخه .

هم غفور، اشرف خلیــل او کامگار خان دی (۹٦)

احمدی صا حبزا ده(۱۱۳۸ـ۱۲۳۲ هـ ق) په مثنوی‌هفــت پیکر کی‌دقلندر ددیوان یادونه‌داسی کړی ده :

همدارنگ د قلندر د خیرالدین وو
دحاجی محسن اوبل دصدرالدین وو (۹۷).

## دقلندر داشعارو ترجمی :

د قلندر شعرونه په‌انگریزی‌او ار دو ژبو ترجمه شوی،او ددیوان په هغی‌نسخی‌کی یی،چی دغه متن تری تهیه شوی، دځینو شعرونو لاندی او یا په‌حواشیو کی په دری ژبــــه شرحی ، او دگرانو لغاتومعنی‌هم راغلی دی .

د قلندر دوی هغه غزلی‌چی‌له چمن بی نظیر نه په کلید افغانی کی انتخاب شوی دی،د ټی،سی، پلاوډن له خوادکلید افغانی په انگریزی ژباړه کی‌په انگریزی ژبه ترجمه شــوی دی (۹۸) .

۹٦ـ دبیدل دیوان ص۲۱۲ ،د۱۹۵۷ کال د پیښورچاپ.
۹۷ـ تیر هیر شا عران‌ص ۱۴۱.
۹۸ـ وگوریء ! دکلید افغانی‌انگریزی ترجمه نه ټی. سی. پلاوډن ، طبع ۱۸۷۵ع لا هور(د فاضل استاد پو هاندرشاد په مننه ).

په ار دو ژبه دا دبیـــات سرحد مؤلف ددغه کتاب پـه لومړی ټوك کی د قلنـدر ۴۰ بیته ترجمه کړی (۹۹) او پـه تاریخ ادبیات مسلمانان ادبیات هندو پاکستان کی هم د قلندر څلور خلوریزی په ار دو ترجمه شوی دی (۱۰۰).

**دقلندر ددیوان خطی نسخی:**

د قلندر دیوان دپښتو پـه هغو آثارو کی حسابیږی، چی مخطوطات یی ډیر لږ دی تراوسه موږ ته په گرده نړی کی دقلندر د همدغی یوی نسخی پته شته، چی داچاپ مو دهمدغی نسخی له مخی برابر کـړ ،مخکی تردی چی دغه مخطـوط دروپیژنم ، دده ددیوان د خطی نسخی په باب دیوی بلـــی خـبــر ی یـــا دو نـه کول لازم بو لم،او هغه داچی مر حوم محمد گل نــــوری (۱۳۲۰ـ ۱۳۹۶ هـ ق) دکابل مجلی په ۱۱۰ گنه کی د« میراجان او قلندر جان» په مقا له کی دده د د یـــــوا ن یـوه خطی نسخه معرفی کړی، چی مرحوم عبدالواحـــد ور دگ پښتو ټولنی ته دکتنـی لپاره راو ړ ی وه ، د خطی نسخـی مشخصات یی داسی ښوو لی

(۹۹) وگوری ! ادبیات سرحد ج ۱، ص ۲۶۸ـ ۲۷۶ .

۱۰۰ـ وگوری ! ادبیـــا ت مسلمانان هندو پاکســـتا ن ۱ر ۱۰۵ـ۱۰۶ .

دی : نسخه دسر دار محمداعظم خان‌په‌و خت کی پـــه ۱۲۸۳ هـ ق د منشی عبدا لنبی‌خان په‌سپارښت دآخوند الله یار دپاره د حبیب یا حسیب‌کاتب له خوا کښل شوی ده، نوری کښلی دی :« دا دیوا ن۱۱٤ غزلی ،۳۵ رباعیات ، او ۱۵مسدس اشعار لری»(۱۰۱).

له عبدالواحد خان وردګ‌سره د قلندر د خطی دیوان‌د موجودیت په‌باب دمرحوم نوری‌ترلیکنی یو کال د مخه‌ښاغلی زمریالی په‌کابل کالنی‌کی هم‌یوډ ادبښت لیکلی ؤ (۱۰۲) ، نومو ړی نوری بیا د ملـــــی‌هینداری په دو هم ټوك کی‌د میرا جان او قلندر جان ترنکل‌وروسته، دقلندر ددیوان ددغی خطی نسخی مشخصات خپاره‌کړ ی دی (۱۰۳) ۰ پو هانـد رښتین هم د پښتو نسخو په‌فهرست کی د عبدا لواحدخان وردګ د کتب خانی، دقلندرد دیوا ن‌نسخه یا ده کـړی‌ده (۱۰٤) .

---

۱۰۱ــ کابــل مجلـــــه ،۱۳۱۹ ، ۱۱۰ ګڼه، ۸۸ مــخ ، میرا جان او قلندر جان .

(۱۰۲) کابل کالنی،۱۳۱۸کال ،۳۳٤ مخ .

(۱۰۳) ملی هینداره ۲ج ،وروستی مخ ،

(۱۰٤) هیــواد ، د ۱۳٤٦کال په ګڼو کی د پښتونسخو فهرست ، ۱۲۹ ګڼه .

د جمهور ارگ په کتابتون کی دقلندر د دیوان یوه نسخه شته ، چی استاد دبورکوی یی په خپل فهرست کی لنډه شانته معرفی راوړی ده(۱۰۵). دا چاپی متن دهمدی نسخی له مخی برابر شوی دی،او ددی نسخی خصوصیات دادی :

د مخطوطی ټولی پاڼی ۱٤۸او مخونه یی ۹۵ دی ، چی د پای په دری نیمو مخو کی یی دکاتب مناجات راغلی ،او په پاتی نورو مخو کی یی په ترتیب سره غزلی ،ټوټی، اوخلوریزی راغلی دی ، چی دغزلو شمیریی (۱۱۲) د ټوټو شمیر یی ۱۳، او د خلوریزو شمیریی ۳۲ دی ، دنسخی کچه : ۲۰ × ۱۲ سانتی متره ،اودمتن کچه یی ۱۵ × ۱۰ سانتی متره، په هر مخ کی یی ۱۲ کرښی کښل شوی دی ، خط یی نسخ او کاغذیی قوقند ی دی، هرمخ دری کرښیز سره اوشنه جدو لونه لری ، دشاعر نوم په سره خط کښل شوی،نوره نسخه په توره سیاهی کښل شوی ده ، دشاعر نوم ځای ځای سپین هم پاتی دی . دنسخی په پای کی دکاتب تر مناجات وروسته دا عبارت کښل شوی دی :

«تمت تمام شد ، هذالکتاب ملاقلندر ا خند غفرالله له ولمن

(۱۰۵) داستاد دبورکوی فهرست، ص٤٦، د١٩٦٤ کال چاپ .

قال له دعاء الخیر حســـب افر موده اخوی کرام محـب فرجا م پیش در پلتن سردارظفر شاه ، محمد اعظم خــان ۱۲۸۳۰۰۰» . کاتب یې حسیب نومیږی .

دغه نسخه او هغه نسخه چې دعبدالواحدخان بلل‌شوی، په ډیرو خصوصیاتو کې سره ورته دی ، بنا یې یوه دبلـې نقل وی .

## دنسخې املایی خصوصیات:

دغه نسخه دپښتو دنـــورونسخو په معمول رسم الخـط کښل شوی ، مگر ځینـــې ځایونه یې «کښ» چې په اکثرو قدیمو نسخو کی معمول ؤ، د«کی» په شکل لیکلی ، نـــور پښتو توری یې داسې کښلـې دی: ځ، څ، یا، یې یه ، ښ، ښ، ړ، ړ ،پ ،ف، ف ،پ، ږ،ږ ډ، ډاملایی غلطی زښتی زیاتی لری .

## داشعارو منتخبات :

لکه څنگه چې لوړوویل‌شول دقلندر د دیوان خطی نسخې ډیری نه پیداکیږی، دغه ډول یې داشعارو د منتخب څرك هم په خطی آثارو کی ډیرنه موندل‌کیږی په چاپی آثارو کی یې هم دکلام‌منتخبات‌لږ ډیر شوی دی، موږ به دلی لو مړی په خطی او بیا په چاپی مجموعو کی دقلندرداشعارو انتخاب وښیو :

## ۱ـ چمن بی نظیر :

دچمن بی نظیــر (۱۰٦) دمجمو عی په۱۷برخه‌کی‌دقلندر (۵) شعرونه انتخاب شــو ی‌دی .
د ملابنایسته خان په خطی‌جونګ ( ۱۱۳٦ ﻫ ق لیــك) (۱۰۷) کی دقلنــدر ۳۰ غزلی۴٤ څلوریزی، او ۱٤ ټوټــی منتخب شوی دی ، چــی ټوټی‌یی زیاتره په وزرو کی راغلی دی (۱۰۸) .

---

(۱۰٦) د چمن بی نظیــردپیژ ند نی له پاره وګوری‌ع !
۱ـ دبلو مهارټ فهرست ،٤۵ لمبر کتــاب، د ۱۹۰۵ ع کال دلندن چاپ .
۲ـ پښتو کتابونــه ، ص۱٤۵، د ۱۳۳۷ کال چاپ .
۳ـ د میکنزی فهرســت ،ص ۹۳ـ۹٤ـ د ۱۹٦۵ ع کال داکسفورد چا پ .
٤ـ دپښتو پخوانی تذکری،دښاغلی رفیع ص ٦٤ـ ٦۵، د۱۳۵۰ کال چا پ .
(۱۰۷) د ښایستــه خا ند جونګ دپیژندنی لپــــاره وګوری‌ع !
دوز می مجلی د ۱۳۵۲کال‌ګڼی، ا دبی ستوری ،ج۱ .
(۱۰۸)دملا ښایست خان‌په‌جونګ‌کی دقلندرراغلی پاڅکی په ۱۳۵۳ کال کی د آریانا په‌مجله ، او بیاپه ا دبی‌ستوری ج۱ کی چاپ شوی دی.

**۳- داستاد رشاد مجموعه:**

له فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد سره په یوه خطي مجموعه کې د قلندر دوی غزلې شته (۱۰۹).

**٤- دحسیب گل میابیاض** : دمیاحسیب گل کاکا خیل (۱۳۰۵ ق مړ) په بیاض کې دقلندر په نامه دیوه شاعر دغزلو انتخاب موندل کیږي(۱۱۰) .

**ب- په چاپي آثارو کې :**

دافغانستان او پښتونستان دښوونځیو او پوهنځیو درسي ادبي کتابونو او تذکرو او ادبي تاریخونو کې هم د قلندر د اشعارو نمونې راغلي ، له دې سربیره په دغو چاپي مجموعو کې یې هم غزلې منتخب شوې دي :

**۱ -کلیدافغاني :**

په کلید افغاني کې دقلندر دوی غزلې له چمن بې نظیر

---

(۱۰۹) داستاد رشاد په دغه خطي مجموعه کې، دمسعود بن عبدالله آدم خان در خاني او ځینې نور آثار هم راغلي دي.

(۱۱۰) دحسیب گل دبیاض پېژندنه په پښتانه لیکوال، د پښتو ادب تاریخ او پښتانه شعرا ع ج ٤ کې راغلې ده.

ښځه انتخاب شوی دی (۱۱۱)

**۲ــبهارستان افغانی :**

قاضی میرا حمدشاه(۱۲۷۹ــ۱۳۵۳ هـ ق) په بهارستا ن افغانی کی د قلندر دوی‌غزلی‌را اخیستی دی (۱۱۲).

**۳ــ چمن فیروزی :**

دچمن فیروزی په مجموعه‌کی د مجلسی شاعرانو دکلام دانتخاب تر څنگه دکلیدافغانی‌او چمن بی نظیر دشاعرا نـو ځینی شعرونه هم راغلی دی،په دی برخه‌کی د قلندر یـوه غزله هم راو ړله شــــوی‌د ه(۱۱۳).

**٤ــ بهار گلشن:**

دبهار گلشن په مجموعــه‌دقلندر یوه‌غزله راغـــــلی د، (۱۱٤).

---

(۱۱۱) وگوری‌ء ! کلیـــــدافغانی د ۱۸۷۲ ع کال دلاهور ،ص ۳۸٦ــ۳۸۷ .

(۱۱۲) بهارستان افغانی ،ص ۸۱، د۱۸۹۵ع کال‌دلاهور چاپ، (۱۱۳) چمن فیروزی‌ص۱۷، د ۱۳۰٦ هـ ق،دد هلـــی چاپ .

(۱۱٤) بهار گلشن ،۱۳۳۰هـ ق‌دلاهورچاپ .

**۵ـ پښتنی سندری :**

په پښتني سندری دو هم‌تړك كي هم دده یوه غزلــــه راغلی ده . (۱۱۵) .

**دقلندر ددیوان‌چاپی نسخه:**

دغه چاپي متن چي تاسی يی‌گوریء! له هماغی‌یوی خطي نسخي څخه نقل شوی ، د ملابنبایسته له خطي جونگ، د استاد رشاد د مجموعی له‌خطی‌شعرونو ، کلید افغانــــی، بهارستا ن اوبهار گلشن پــه‌مجمو عو کی د قلندر له‌راغلو شعرونو سره مقابله شوی دی‌په لمن لیکونو کی دبنبایسته خان جونگ په «بن» داستــادرشاد نسخه په «الـــــف» بهارستان په ب ۱، او بهـــارگلشن په ب۲ او کلیدافغانی په «ك» بنوو ل شــو ی د ی‌كوموځایو کی چي دنسخه‌بدل شکل غوره بنکاره شوی ،هغه‌مو اصل ته ورانتقال کړی، او اصل مو په لمن لیـك كـــی‌بنوولی دی .

---

(۱۱۵)پښتني ســنــدری ج۲ ،ص ١٦۵) د ۱۳۳۵ کال چاپ .

## بسم الله الرحمن الرحیم

# الف

«۱»

چې ونه شو(۱) په ژړا زما اثر ستا
باری ایښی دی دزړه په ځای حجر ستا

په کاته سره یی اوښی ځی د زړ ونو
داد برندو سترگو خوی دی مقرر ستا(۲)

په فریاد د رنځورانو پروانه کړې
که هزار ځله فریاد کوی په در ستا

په هیبت به د باغ گل په زمکه توی شی
که بیا وشی چېرې باغ وته گذر ستا

---

(۱) بن: ونه شه.

(۲) بن: په کاته دسترگو اوښی ځی له زړونو
دچشمانو خوی دې دادی مقرر ستا

په سحاب (۱) کی یی پنا کړمخ له شرمه
چی (یی) واوریده دحسن غبر قمر ستا

ای له دی چی رنځورانو ته شکنځل کړې
هر ستم سی نور منلی دی په سر ستا

په هنرهنر عاشق پهمینه بند کړي
صد رحمت دې وي پههسی رنګ هنر ستا

ته به څوپهخپل ستم مغروره ګرځې (۲)
مه کړه بیا هغه غلام دی «قلندر» ستا

« ۳ »

*۲*

*۸*

نشته ماځخه نور توان ستا دجفا
ستا رضا که (۳) اوس جفا کړی که وفا

خراب شوی ستا پهغم کی هسې رنګ یم
چی می نشی کړی عرب عجم دوا

---

(۱) بن: پهابر.

(۲) بن: ته پهخپل ستم نازیږه بتاویره.

(۳) بن: چی.

سمندر غوندی په اور کی سی ژوندون د ی

یوساعت نه یم له د ې اوره سوا

دامذهب د عاشقانو دی په عشق کی

له معشوقه شکا یت د ی نا ر وا

ولی زه له خپلی د یرې بی صبر یې

قایم نه یم د ا شنا په ا شتکا (۱)

کوم معشوق هسی بی غمه بې پروا د ی

لکه ته له ما بی غمه بی پر و ا

مادی ستاله لاسه جور هسی لید لی

چی په درست عالم کی گرځم بی نوا (۲)

په افسون په دم جرېې نه رغیږي

چی خوړلی وی دزلفو اژدها (۳)

---

(۱) بن: یم قایم داشنا په اشتکا

(۲) بن: ستاله لاسه می شالاق هسی خوړلی

په تمام عالم کی گرځم بی نوا

(۳) دا بیت له بن نسخی نه نقل شو .

سرهم سل محله ورجار کړه قلندر ره

که يې غواړې شاه ، دېډه ديد ن بها (۱)

که دسربندل په ساوبه تاگوان دي

«قلندر» وته سر سپک دی ترگیا (۲)

«۳»

*۳*

*۱۸*

چی دعشق په نغوته دروسې د هوا

په جهان کی به څه نه کړې بی دوا

دصراط په نری لاربه برابرځې

چی له شرعی نه بل لورځې نه بل خوا

دم په دم پرشر يعت برابر دروسه

قدم مه اخله په لور دنا روا

هسی خوی که چی هرڅوک دې یاد په ښه که

که دې خپل که دې پردی وی که اشنا

(۱) اصل: که وغواړی یار، دديدن بها (بن)

(۲) بن: له گیا.

په‌ښه خوی باندی پردی عالم خوايږی

په بدخوي باندې خپل واړه شی سوا ۱

نیکخوا هی دواړو کونو نیکنامی ده

خد ای خو کڅ سه کړه په بدخوی سره رسوا ۳

که بشر دې رب بدل په بل شه نه که

واړه ستادې دجنت من و سلوا

وایه شه به دې وي غم څه به‌اندوه کړي

چی په مخ کی پاکڅ رسول لرې (۱) پیشوا

چی اتلس زره قامه به‌ولاړ وي

رب دې نه که «قلندر» هلته رسوا

«۴»

* ۲۷ * * ۴ *

هسی لاړم دخو با نو په هو ا

چی یکسو شوم له روا له نا روا ۲

---

(۱) اصل : کړي

بی له یا ره جهنم راته لیده شی

کهسی محای (وی) عین جنت المأوا

دهغو له ملا قا ته زه و یزا ریم

هر چی دي د یا ر له مخه ما سوا

زه بی یاره ځای ګنم تر خاورو لاندې

که پر عرش می لګید لی وی سر بیا

ستا دهجر په اور هسی لغوړن یم

چی می نشته په دوزخ باندی پروا

خوامی د کهشی هغه ساعت لهاوره

چی یو دم شې له رقیبه خواپهخوا

هسی لوی مرض شو پېښ را تهدمینې

چی طبیب می لاس پهسر کړه لهدوا

مسیحا مګر را کوز شی له آسمانه

ګنه نو ر یم لـه عـلا جه بی نوا

«قلندر» دقناعت پرخونچه(۱)ناست دی

نه بی برنج دچا پهکار دی نهحلوا

---

(۱) خونچه- خوانچه.

# ب

«٥»

*٣٦*　　　　　　　　*١*

چی رخسار ي کړي (١) خجل گل د گلاب
تور کاکل يې د سنبله ورک گی (٢) تاب
مرغلرو دې وغاړو ته ځوړ و نيو
ستا سروشونډو له ياقوته يووړ تاب (٣)
د گل برگ دی له رخسار سره سم نه دی
مخ دې کله شماري زلفی په شتاب (٤)

---

(١) بن : کړ.
(٢) بن : سيه زلفو د سنبلو ورک که.
(٣) بن : پهشفت دې دياقوتو ويوست تاب.
(٤) بن : دگل پاڼی دې له گل سره له لگی
مخ دې چپړي شمړی زلفی په رخسار آ ب

په جلوه کی یې سیالی کړه ستاله مخه (۱)

باري زلفی دي تېری که (۲) پر مهتاب

په سبا می مخ په نمر شی یا په گلو

هغه شپه چی دلبر و وینم په خواب

هري تلخی د مخکدن په وی آسانه

چی لیدلی د بیلتون چاوی (۳) عذاب

د رقیب په سر قـدم پرده «قلندره»

که گټی په هر قـدم د حج ثواب

«٦»

* ۲ * * ۴۳ *

لکه زه یم ستا په هجر کی خراب

هسی بل مسلمان مه شه په عذاب

---

(۱) بن: په رنا یې ستاله مخ سره سیالی کړه.

(۲) بن: کړي.

(۳) بن: د جدایی وي.

دباران په‌دودسی او ښی‌ځی له‌سترګو
په خاطر سی شه غالب دغم سحاب

کرم بدل به پرې اته سره جنته
که زه ځای‌سوسم په درستا په تراب

لکه کر دلاری باد په شتاب یوسی
هسی تا له ما زره یووی‌ء په شتاب

تر دهن‌دې د کباب‌دغو ښوبوی ځي
شه خاطر می ستادغم په اور کباب

ستا په‌عشق کی‌سانو رڅه نه‌دی‌مه‌ندلي
بی جنو نه چی می بیا موند داخطاب

له لغمو یی بلبلانو تعلیم واخیست
«قلندر»چی ستا په‌غم که تب وتاب

*۵۰* «۷» *۳*

شپه وورځ هرماتېر یږی‌به آشوب
ستا چشمانو ناروا کړ هرماخوب

عاشق محکه آشتی که دعشق له تا وه

چې پارچه دی له دو زخه مینتوب

که آه وکاږم له ډېره درده دو که

لا یې شست شي د ښه مخ ، په توبا توب

که زما د زړه آتش ور باندې پر یوځي

شي به غرونه لکه موم هسې په ذوب

اندرون مې ستاله غمه هسي ور یت شه

چې په سیند سره به هم نه شي خروب

«قلندر» د(میرا) (۱) غم هسې زخمي کړ

چې له ستر کو تو یوی د زړه زهوب

---

(۱) دا بر خه په اصل کې نه ده لېکل شوې .

ت

«۸»

* ٥٦ *

* ۱ *

په قرآن ختم کومه په حاجات

ستا په د رمېنه قبلېږی مناجات

کم طالع یم ستا په دور پیدا شوی

په غصه دي را ته ارض وسموات

له مشرقه تر مغربه مخ د زمکې

که سری دي که پیري که حشرات

حیوانات که جمادات یا نور څیزونه

رضانه دي ستا زما په ملاقات

هم زما دقتلو لودعا گوی دي

دآهو په ښاخ گوي زما برات

که له زنگی د آسمان په لوری ځمه
هم مې نښته مراتب او درجات
په کوښښ که ترخرگاهه پورې ورشم
ماه مې نخ که په ځپړو سره مات
عطارد را سره مات شو په عطا کې
زهرې زهر را په خوله کړه قاتلات
د آفتاب آفتابه واچوی له لاسه
راته نه کوي په مهر التفات
مشتري چې راته وگوري له ورايه
په غصه له ما نه يوسې کل ثبات
له بهرامه مې بهره حاصله نه شوه
له زحله مې حل نه شوه مشکلات
ثوابت مې سترگې وکاږې په گوتو
سروهلوته مې ود روي جلات(۱)
ثريا بنات النعش سعر كه شي
يوو بل ته سره کاندي وصيات

(۱) جلات = جلاد

نظم نثر سره جوړ که په جواب کی

چی له مرګه برخه بیا سونده حیات

که یی شمعی ته دمخ لکه پتنګه شم

قبلوی سی نه هرګز دا تحیات

که پر پښو دهغه یار باندی پر یوځم

له کیڼی را څخه ئغاړی قدمات

که فلك تاسع له ورشم راته وایی

چی اتلس را وره تاخپل جرو مات

په دغه طریق ترلو حه تر قلمه

یا تر عرشه تر کرسي دا درجات

هم هغسی سرزده خوار و افګار یم

ځای سی نشته په دې شپږ واړه جهات

داتمام دعشق دولت دی که پوهیږې

چی مین شی ځوك نونه کوي عزات

(دامیرا) به در په درګر ځیدنه کله

که ایستای «قلندر» ته [د] خپل [حسن] زکوة

ث

*۷۷* «۹» *۱*

زړه‌می تل‌ستا په ارمان دی الغیاث
لکه زلفی ستا پریشان دی الغیاث

لکه ګل د نازله خوابه‌ستر ګی واکه
ګړن د ستر ګومی باران دی الغیاث

ستا غمو نه‌می په زړه باندی میشته دی
خوشی‌لښلی‌ترې کاروان دی الغیاث

د بلبل په څیر شوم سرپه فریادونه
په منظور سی ستا بوستان دی الغیاث

داستا سر و شونډو زه وسومه د لیره
په آه شین زما آسمان دی الغیاث

لږ زړه‌سوی راباندی‌و کړه میراګله
«قلندر» په زړه بریان دی‌الغیاث

# ج

«١٠»

*٨٣*

*١*

حق حيران هم دخوبانو په مزاج
چې په سروسترګويي زړونه کړه تاراج

موميايي (يي) دخپل ځان را ته و ښووه
ما چې وغوښت له اغياره خپل علاج

چې ترې طمع د وفا کړم خطا نه کړم
چې له ګله يې نازك وينم مزاج

کوم زمان به يې بازمات که متادسترګو
هې ارمان دی د ازما د زړه دراج

ورې مې اوښکې لکه تيل کړلې ورتوې
چې مې بل په زړه د مينې کړ سراج

تاخت وباخت يې ځکه ملك دقناعت کړ
چې جنون له عقله رانيو دعشق راج

دوزبا ن قلم یی کله تقریر کښی شی
هسی ز ه یم ستا د یدن وته محتاج

د امید مزی یی و شلېږی له خدایه
هر چی و که و بند ه ته احتیا ج

مګر خیا ل د سلطنت لري په زړه کې
( قلندر ) چی په سر کښېښو دعشق تاج



# ح

«۱۱»

*۹۲*　　　　　　　　*۱*

چې دعشق مؤذن وکړو فلاح (*)

د هوس د ځا یه لاړ زما ار واح

عجا یب غرایب ډیر څه ور ښکا ره شي

سیر سي زړه که د ارت سلک لکه (۱) سیا ح

دخوښۍ دځان دپاره یې لاهو کړم

زماز ړه ، وخت دی که لاس راکې صلاح

دافتوی دحسن شوې ده و تا ته

سر و مال چې دعاشق کنمې مباح

چې نز دې دې کړ رقیب بدغونی ځانته

د ازما دسر ګ تحقیق کوی صلاح

---

* د « فلا ح » کلمه ښایي چې په اصل کې « الفلاح » وی .

(۱) اصل : له

مخ دزرە پەوینو سور لکەلالە کرم

چی ارم زە ستا د شونەو دجام راح

«قلندرەدی د سیرا بەغم کی ژاری

کە بلبل کاندی غوغا الی ا لصباح



خ

«۱۳»

* ۹۹*

*۱*

دا په خوب کی را حضور شه د دلبر مخ
که په ابر کی(۱) ښکاره شه د قمر مخ

په خند اخند ادگل، سباسره خوله کړه(۲)
چې و باغ ته د نسیم وشو(۳) سحر مخ

چې یې ولید ه دا ستا جو هر د غاښو
پټ له شرمه په خپل آب کی کړ گوهر مخ (۴)

---

(۱) ښ: که په اوریځ کی.
(۲) ښ: د گل اطفال سره خوله کړه.
(۳) ښ: وشی.
(۴) ښ: چې یې ستاجو هر دسپینو غا ښوو لید
پټ له شرمه په او بو کې که گوهر مخ

له حيادې غټ و مخ ته کتې نه شم

کله لمدبه خو بو ستر گوشې دنمر مخ

را به یاد چې دې دمر و شو ندوخو ابه کړم

ټکو م لکه مګس عبث خپل سر ، مخ

که سې ورولې دور کاشنا تردره

و تلو ته څکه نیسم درهبر مخ (۱)

«قلندر» هاله میراته عاشق بوله (۲)

که یې و نیو ستابانو ته دټتر مخ (۳)

---

(۱) اصل: څکه نسیم زه وتلوته در هبر مخ

(۲) اصل : قلند رته میر اهلته عاشق بو له (بس).

(۳) بس : که یې بنه دی بنوته د څیگر مخ

د

«۱۳»

*۱۰۶*　　　　　　*۱*

څو چې نه شي ستا له سينې زړه زما سرد

ستا خاطر به هرګز نه شي له جفا سرد

شايا سي به ستا د عشق په اور نه شي

که سي زړه وي ستا په عشق کي له ژړا سرد

زه به څرنګ صبر و کړم ستا له مينې

کله زړه د اشنا کيږي له اشنا سرد

نصيحت دې نا صح نه کوي وماته

نه به که ما ستا له غمه واويلا سرد

چې ستا حسن له سهتا ب څخه تيري که

ترو به زړه زما څه شا ني شي له تا سرد

ګوندې بيا سو سي ستا او صل پس له مرګه

څکه زړه د «قلندر» دی له دنيا سرد

*۱۱۲*　　　*۲*

که روان کړم تر لیمو دو ینور ود
نه مې یار په ژړا سو ړشو او نه تود
چې د حسن په مې مست راته ښکاره شې
د لته زه دژ ړاجوړ کړ مه سرود
که هزارد ردو درد ونه ور ته ستا یم
په رضا مې نه رادرومې په هیڅ دود
ستادحسن په چمن کې د وه ر ودو نه
له دووستر گوزنا ښاخې* باړه، جمر ود
چې مد ام دزړه په وینو آلوده وي
داز ما کمیس یې خدا یه چېرته اود
«قلندر» خرقه په غاړه پسې گـرځـې
په د یدن دیار کوي د زړ گې سود

---

* د ښاخې کلمه ښایي چې په اصل « ښې » وي .

## ذ

«۱۵»

*۱۱۸*

*۱*

مخ یې سپین ورق ، خال وخط توري په کاغذ
څکه سرو سال عاشقان پلوري په کاغذ (۱)
دادی تماماً دمحبت کمال تورو نه
یار له جدایي چې یارژغوري په کاغذ
ته که نه را دروسی گاهې گاهی په‌خط یاد کړه
نیم سلا قات وینم ستا له‌لوري په کاغذ
مه کوه نا ترسه دجفا ستم را باندې
کله کله یاد کړه خپل غم خوري په کاغذ
وران به هرگز نه شي کښلي توری له ازله
هرزمان که سترگې دچاوري په کاغذ

---

(۱) اصل: سرو سال عاشقان په نا اسب پلوري په کاغذ

ستوری دطالع هم له جبینه معلو میږی

څه گوری فالونه دبخت ستوری په کاغذ

مه گوره بی خطه «قمندره» یارو مخ ته

بی نورو رندیږی چی څوك گوری په کاغذ



ر

۱٦

*۱*　　　　　　　　　　　　　　*۱۲۵*

چې ویښته دې په سپین مخ شول ، برابر
لادې زیاته شوه هوا دمال و سر

په پیرۍ کې حرص کوې گرم نه یې
مړی وړی شی په وخت د نماز دیگر

سپینه ږیره همسا واخلی تیر یری
دروتې په طلب گرځې در په در

په زور تیا دې پیروی د گیډې وکړه
بوه ورځ نه شوې په سنده د سرور

په نما نځه کی نیم رکوع کولی نه شې
درسته ورځ په تیتول کړې ما ت کمر

بیا ها له که ارمان کړي وار به دې تېروی
چې دې اګی ( ۱ ) دلحد په خښته سر
په دنیا پسی ویښته چوې له عقله
او دډین له علمه هیڅ نه یی خبر
قناعت هسی دولت دی «قلندره»
چې سړی کا په نیستی کی توانګر ( ۲ )

«۱۷»

*۲* ✿۱۳۳✿

ستا ابرو ( یو ) هسی یاره کړم بی سر
چې یی خم لکه هلال کړم مات کمر
په بستر چې ګلعذار را سره نه وی
په سرو او ښولاله زار کړمه بستر
دسرو لبو خیال می نقش دی په زړه کی
څکه سرې او ښی می څاڅی تر بصر
له یاجوجو د هجرانڅه خو ګوښه دیم
چې می غم شو دیار سد سکندر

(۱) اصل : لږی .

( ۲ ) داغزله له کلیدافغانی څخه نقل شوه .

ستا له مخه کړم ژړا ساره آهونه

چې پروخت دګلو وی با د مقرر

چې له ځانه له جها نه خبر نه یم

۳ هسې ډوب یم ستا په غم کې سر ا سر

دازما سرو خر ام وماته ګوری

که و بیدو ته مایل شه صنو بر

که پرما دیار دوصل لوی اختر شی

هغه روځ به کوم زه حج ا کبر

۴ هم په داچې قناعت لری په کنډ کې

په شا هانو پو رې خا ندي«قلند ر»



«۱۸»

*۱*

*۱۴۲*

چې په مهر يې نن مخ زما په‌لور کړ
هم هغه سې په کور پورې د غم اور کړ

لا چمن يې تازه نه ؤ رسيدلی
بياسموم د زمانې په زمکه خور کړ

دريغه دريغه هغه خلک عاشقان شوو
چې وساته يې په‌سينه کې په‌غور کړ

دزړه غوږ وناصحا نو ته نه نيسې
خدای دلبر له بده فعله کړو کور کړ

له هجرانه عسی خم لکه هلا ل شوم

دابرو یو لور یی لارا باندی زور کړ

خدایزده بیابه‌می په کوموغوونوسر که

چی‌یی فوج د هجران‌خپل راپسی‌سور کړ

اې میرا که‌څوک ژوندی په‌گور کېدلای

«قلندر» به ستا له همه سر په گور کړ

«۱۹»

*۱۴۸* *۲*

ستاچشمانو می‌په‌سر کی هسی‌شور کړ

گویاوران‌می(۱) په‌داشورسره‌لاهور کړ

زه په طمع دوصال‌دې خوښ خرم وم

رقیبانو دې آواز په چورا چور کړ

په مخمورو م ستا په میو د لبانو

په هجران‌دې‌درست‌جهان‌راپوری‌اور کړ(۲)

---

(۱) نښ : وران یې

(۲) نښ : په ماسوراور کړ

چې نظر مې د تقدیرو کړ په کښلو

تیر په ځان مې په دا هجرستا د اخور کړ (۱)

خوشو قتی به په مارا یشی عالمه

که اشنا په خپله سررا ته سرتور کړ (۲)

رقیبا نو واړه سخی را پخی کړي

چې دې سخ نن په اختیا رد هند په لور کړ (۳)

ماویل (۴) ته به زما مخ سپین کړی دلبره

ولی تا تر مهرویانو مې مخ تور کړ

---

(۱) ښ : چې نظر مې د تقدیر که په حالات کې

څه خو ځان مې له دغه جانبه سور کړ

(۲) هن . خوشحالی به په ما را شی دمهر و یانو

که میرا پخپله سرراته سرتور کړ

(۳) ښن : رقیبانو واړه سخی را پوره کړي ـ ولی تا ترمهرویانو مې مخ تور کړ

(۴) هس : ماوی.

درست جهان راته ویل چی (۱) سه جاروزه

باري خه کړم (۲) چی جهان دي راته اور کړ

په ژړا سی کورو کلی خبردار شو (۳)

چی هجران دي له فراقه په ما زور کړ (۴)

تل آه و زه ستا په درکی قلندر که

تاچی سپی رقیب له ځان سره خمسور کړ (۵)

---

(۱) نس : ویل که.

(۲) نس : ولی خه کړم .

(۳) نس : په ژړا باندي سی کور کلی خبر شه.

(۴) نس : په ما اور کړ.

(۵) نس . آه دي قلندر کـا نـدی پـه درګـاه کـی سیرا تا چی سپی رقیب له ځان سره خمسور کړ

س

«۲۰»

*۱*

*۱۰۹*

گروه د سهرو یانو که حق بین وای حق شناس

نه به وواله هجره کړی ما هوسره هراس(۱)

دا رنګه روښ دی دخوبانو(۲) په در بار کی

کله شي پادشاه کله کندول شي ور په لاس

نه کوي دارو زما دزړه د زخم ولی

دم په دم زیاتیږی ددغه زخم اماس

سور ګریوان په وینوزه، دخپلو وینو ناست یم

زړه زما په مثل ګویا یې ک دوینو طاس

(۱) نس: نه به ؤله هجره زما هومره یې پرو سواس.

(۲) نس: ددلبرو.

شپه وروځ په دازه مستغرق یم دشراب (۱)
وینم یکی هردم دخوبانو (۲) انعکاس

دا واړه خطاب دنیکو نیك دبدو بدته
هرچا ته چی رسی خورسیږی په خپل لاس (۳)

هردم چی یی غواړی کشتنی غوندی حاضردی
کله «قاندر» له تا باغی کرځی سواس!



---

(۱) نس : په شرابو مستغرق یم .

(۲) نس : ددلبرو .

(۳) دابیت دښایسته خان له جونګ نه نقل شو.

«۲۱»

*۲* *۱٦٦*

ترابده په کوي هوا هوس

چې اسیر کړي خدای دسینې په قفس

چې سوجوده یې پیاله فی الحاله نوش کړه

په هغه کار کی هیڅ په کار نه دی وسوس

د خوبانو زیارت هلته هغه روا شی

چې دځان په وینو وکاندی اودس

چې ونه خوري شیریني دیار د لبو

په دوه لاس تندی وهی لکه مگس

ماچې زین دوینو باندی په گردن کړ

بار بردار شوم همیشه لکه فرس

چې نقطه یې والف ورکړه لهب نه

شور یې که کړ په جهان کی یو په لس

رقیبان دیارله کویه نه‌بنا ئیبڕي

له جنته لرێ بویه خا رو خس

په‌لمن به‌دێ راواخلی که خاشاک شی

تل را کارِی کاه رو باوخانته خس

«قلندر» طوفانوی هجر ان په ا وبنو

سکر ووایی سرا چی بس کره بس





# بن

«۲۲»

*۱*

*۱۷۵*

لکه زه یم ستاد حسن په بازار خوبش
بلبلان به هسی نه وي په گلزار خوبش
ستاد زلفو درخسار طلب په زړه کی
ځکه پروت دی پرچندړو قل (۱) بنامار خوبش
که یی غوخ (۲) که د غمزي په تیره توره
زړه (یې) لاشی (۳) ددی توري په پرهار خوبش

---

(۱) بڼ : په چندړ باندی .
(۲) بڼ : که دي غوخ ، ب ا : که دي غوخ کړي .
(۳) بڼ : زړه می لاړشه ، ب ا : زړه می لاشی .

چې بې یاره یې له نورو خلکو خلاص کړم
مست هم ځکه وی دسیوپه‌شرشارخوبش (۱)

چې یې رنګ دی ستا دزلفو په رنګ شوی
درست جهان کړ ، ځکه‌مشکودتاتارخوبش (۲)

له‌آزاره چابازارسوندلی نه دی
ولی‌ته‌زما دزړه شوي په‌آزار خوبش (۳)

---

(۱) ب ا : چې‌بې‌یاره یی له‌نورعالمه خلاص کړم
مستان ځکه‌دی دسیو په‌شرارخوبش

بش : چې بې یاره‌یی‌له‌نوره‌غمه خلاص کړه
مستا ن ځکه وی دسیو په شرشار خوبش

(۲ ) بش چې:تشبیه‌یی‌ستاله‌زلفو سره وکړه
د رست‌وګړ ی مشک کړ دتاتار خوبن

ب ا : چې تشبیه یی ستا درلفو سره وکړ م
درست وګړی ځکه‌مشک کړه دتاتا ر خو بن

(۳ ) بش : ولی شوی په‌رسولو د آزار خوبش
ب ا : ولی شوی په ګتهلودآزا ر خو بن

چې انشایی دي دعشق خوږې خبرې
ځکه شوم ددی مضمون په استفسار خوښ

په ژړا د «قلندر» سیرا (۱) خوښیږي
لکه ګل دبهارانو په بهار خوښ



(۱) ب ا: یار

# ط

## « ۲۳ »

۱۸۳ ۱

ونغاړه پهیارپسی دعشق تمام بساط
لاندی کړه ترپښو ته بیلهسینی کل نشاط
زړه زما [دی] مقراض دسینی ستا هسی غوڅ کړی
کله به رفو کاندی دصبر دا خیاط
سری او ښی به تل ستا پر با رخو باندې بهیږي
ودې کړ که زړه، له عا شقیسر ه ا خلاط ۱۳
گنج تهیی دمخ چیلاستهاچوېنا د انه
ډیر بویه د زلفو لهښاماره احتیاط
ته ترڅو رقیب دځان ترخنگ ډیسی دلبره
کله ملایک له سپیو کاندی اختلا ط
چی یی نهوینم پهستر گو «قلندره»
بی سیرا زه لا ردسوات وینم صراط

ظ

«۲۴»

*۱* *۱۸۹*

واعظان که هرڅو کاندي اختیارو عظ

میخوار نه اروي په وخت کی دبهاروعظ

چی یی در دپند نه لګی په غوږ باندې

وهغو ته هیڅ په کارنه دی اظهار وعظ

۴ دنادان له ګفتګو په بېر ته ګرځه

قبلوه په سترګو پاس د هوښیاروعظ

دآخره زمانه شوه زړونه تنګ شوه

چی اثر پر زوی نه کاندی د پلاروعظ

دوصال وږي په نور څه نه مړ یږي

بی دولته کلمه اخلی سګاروعظ

دفانی حسن په سینه بندی مه شه

بلبل کاندی په چمن کی دیاروعظ

«قلندر» از اروي مهرا پو هېږم

داورکړ یدی رقیب دآزاروعظ

ع

«۲۵»

*۱۹۶*

*۲*

گوره څرنګه بلیږی په ناز شمع
درسته شپه که تر سحره ګداز شمع

پری پتنګ و یئی دزړه لکه تیل توی کړي
چی دسوز په تول کیو که آغاز شمع

وایی زه ترڅاوړوسبی وسوای ایری شوای
سعلو سیږی دپتنګ په پرواز شمع

هم خندا که هم ژړا په یوه‌دم کی
گوره څرنګه لری سوزو ساز شمع

لکه موم و یلی که زړه دپتنګانو
چی سرې سترګی واړوی لکه باز شمع

تیاره ورکه که‌له لارې رونا یی که
حقیقی مینه بازار ده مجاز شمع

د محمود زړه بری مدام لکه پتنګ سو
«قلندره» سترګی دي دا یا زشمع

# غ

«۲۶»

* ۱ *

* ۲۰۳ *

هیڅ ساعت له غمه نه موسم فراغ
چی لرم د جدایی په سینه داغ

سور گر یوان لکه شفق د زړه په وینو
زه هم شومه چی سی وځېش ډك ایاغ

چی د سینی په خوږلن کی لغوړن شوم
ځکه سرلکه مجنون شوم په دماغ

که پراوروم با ران له دواړ وستر گو
کړم خراب به سره لاله تمام د باغ

کښېل بی دواړه قدمونه په ایمه کړم
که رو یبار یی دراتلو راکه ابلاغ

د پتنگ په دود به ځان باندی جلیا کړم
داسپین مخ یی دی د دوو ستر گو ځراغ

د سیرا پرشو نه و تور خال دی د سبنکو
«قلندره» که پر گلو نا ست دی زاغ

# ف

«۲۷»

۱ ۲۱۰

دل‌آزار ﺳﻲ جانان(۱)لاړشو هزار حیف
په سینه ﺳﻲ پیکان لاړشو هزار حیف

دا زما ﺳﺴﻴﺤادم ته‌خلکه راشيء [وګوريء]
اوس له‌ﺳﺎبي درﺳﺎن لاړشو هزار حیف

پژﺳﺮده هم په چمن کی شوه ګلونه
دا بلبل په ارﺳﺎن لاړشو هزار حیف

چی بدن یی ؤ ارواح زﺳﺎ په تن کی
اوس له تنه ﺳﻲ ځان لاړشو هزار حیف

زاهدخوندد یار د کوی‌نه‌دی سوندلی
بوالهوسه جانان لاړ شو هزار حیف

ﺳﺘﺎ دسیمی له کوڅی اوهم له‌غولی
«قلندر»چی ګریان لاړشو هزار حیف

---

(۱) اصل : جانان ﺳﻲ .

*۲۱٦*　　　　*۲*

که هرڅو زه له خواریې دا بدن لرم خفیف
دراستی له برکته هم قوی یم هم ضعیف

صفایی داندرون مې له باطنه څرګندیږي
په صیقل دعاشقی شوم داوبو په دود لطیف

ژمی اوړی تېروم دقناعت په یوه کند کی
خبرنه یم لکه سروه که نوروزوی که خریف

هر چې کښېني په مسند دعاشقیې
احوالات شی دافلاک ئې سراسرورته کشیف

غم دعاشقی دی چې دحده پورته ګران دی
نشته څوک په د هرچې مفرغ شی یا حریف

دپښتو ژبې په شعر په داخپله زما نه کی
پرې دې نښود قلندره بی حمیده بل حریف

ق

«۲۹»

۲۲۲

۱

بیاسی وخوت په کوډی سېلاب (۱) دعشق
خان ومان می کړه لاهود ریاب دعشق (۲)

گوره څو به لرزه (۳) وخورم له فلکه
ما چی کښېښووه پرلب (۴) شراب دعشق

تل پر ي‌ا وری دسرو اوښو بارانو نه
چی یی گرځی پرتندی سحاب دعشق

کو تووالان دعقل سر په سجده کښېږدی
چی‌یی ورشی په کشور نواب دعشق

---

(۱) اصل : دریاب .
(۲) ښ : سیلاب.
(۳) ښ : بودری .
(۴) ښ : په لب .

تا هاله(له) ماحساب غوښتی دلبره(۱)
که زما پهسر کیوای حساب دعشق

دیگک چی جوش که دسرپوښ حاجت یی نشته
عاشق څه کوی دستارپه تاب دعشق

د قیا ست له عذا بو نو به امان شی
څوك چی تېر که په دنیاعذاب دعشق

حاجت نه اری وچنگ ورباب ته (۲)
ږغوی چی شب وروز(۳) رباب دعشق

احتساب به د عاشق پهباب ونه که
که خبر شی محتسب په باب دعشق

اې میرا کهدستگیری کړېدادې وخت دی
دادی ډوب کړ قلندر گرداب دعشق

ستادسخ په گنج کی ای میرا صاحبه
تم تمام کړ«قلندر»گر دا ب دعشق

---

(۱) اصل : غوښت ای دلبره.(بښ).
(۲) بښ : وچنگ وترانی ته .
(۳) بښ : ږغوم چی شپه او ورځ .

# ک

«۳۰»

*۲۳۳*

*۱*

که خواهش لري (۱) ددرست جهان بهتر شوك
بیا به نه موسی بل دارنگه دلبرشوك

دجنت درو دیوار به واړه هیر که(۲)
که یو ځله قدم کښیږدی ستا په درشوك

داورنګك وتخت وتاج وته به شا که(۳)
که غمونه دخپل یارکه تاج افسرځوك

چی نصیب يي شهادت وی ستا په درکی
وری به ښه بلی خواته آب وخورشوك

چی دمخ رڼا دي تېره تر آفتاب ده
نور به څه کا دلربا دورځی نمرشوك (۴)

---

(۱) کك: که آرزو لری.

(۲) کك: کا

(۳) کك: کا

(۴) اصل: تروبه شه که چی ورځی دلبرا نمرشوك (کك)

یی غم دیار اغزی شی په مسند کی (۱)
تروبه ځر نګه آرام که (۲) په بستر څو ک

تري به نه ووځم هرګز هوسره پوهیږ م
که لیرووینی یوځل دعشق کشورځو ک(*)

چې یی او ښو دمخ آب دی پیدا کړی
بیا به نه سومی بل دا رنګ مخور څو ک(*)

چې دناز دستاریه سر که(۳) «قلندره»
ورته کله شی کیتلای برابر څو ک



(۱) ک: په بستر کی.
(۲) ک: تروبه ځر نګی آرام کا
(*) دا دوه بیته له کلید افغانی نه نقل شوه.
(۳) ک: سر کا.

ل

«۳۱»

*۲۴۲ ۞ *۱*

له رخساره دې اور پورى شو په ګل

تورکاکل دې کېږمات کړدسنبل

مرغلرو دې وغاښوچړا ووړ کړ

په سرو لبو دې یا قوت وسو کو ګل

اوراوبه په پوه لو شې کې زیست نه کا

غلیمان دی سره عشق او تحمل

نوهیږم چې دکوم یوه رضا کړم

اخته سه شه په دا هسې بلا بل

ددنیا دا سو دوزیان به په ما هیر کړی

که خپل لب راته نزدی کړی د کك په مل

«قلندر» سیر اله د رده بو یه روغ شی

هوښیاران دې ښه صحیح که په منګل

*۲*

۞۲۳۸۞

لکه داغ چې لاله ايښې دی په دل

هسې داغ مې دی د ننه په کوګل

سر زده مې غورځوی په ونو غنو

مشهور يم د غمونو په د لدل

سرپکار زماله باده د خزان شو

حيدري کړم ځکه غبرِ لکه بلبل

دغنچې په دود دزړه په وينو ډوب يم

چې تل څيري ګريوان ناست يم لکه ګل

لکه کوډې داو بو تل حرکت کړم

بعضې شين يم بعضې تو ر لکه سنبل

ګاه مې کښېږدي د وصال په عمامه کې

ګاه مې وسرو يې د هجر په منګل

چې اثر دلعل ولبو پکې نشته

ځکه ميل «قلندر» کاندی دمل

* ۲۰۰ *

* ۳ *

چې مې نشته و بل لورته دزړه میل

پیدا کړی خدای دیار هم په طفیل

منتظر یې دي دیدن ته غټې سترگې

دا نرگس په شپه وروځ نهارولیل

دانن روځ حج اکبردی که نصیب وی

چې وتلی شاه دقتل ستا، په سیل

اوس سې ځای دفکر یاد نشته چې وکړم

اوس مې نه ورځی په یاددتر کوځیل

په هغه دم به ساور کړي « قلندره»

چې دي قطع شي دیاردوصل نیل

م

«۳۴»

*۲٦۰*

*۱*

زه وصال دخو برو یانو مدام غواړم
بېهوده له لا له ګله دوام غواړم

د یو بچه له آدم زاد سره سا زنه که
زه ناحق له د ي فلکه آرام غواړم

لکه سپی چی ګله تو ګړی ګله چغه
ستاله لطفه زه دا هوسره اکرام غواړم

سکندر روار دتار یکیي په پالنه
مهتر خضر په چشمه د حیوان غواړم

«قلندر» ته ستاددرملنګی بس ده
هسی نه چی منصبونه انعام غواړم

* ۲۶۵ *

* ۲ *

زه مدام سینه پر تا کړم

بې له تا به يې ډرچا کړم

ته خو شمع د مجلس يې

ځا ن به زه پرتا جلوا کړم

ته خو ګل يې په چمن کې

زه بلبل غوندې نوا کړم

زه عاشق ستا د کوڅې یم

دخپل ځا ن په سرسودا کړم

خپل اختیا ر مې وا له پر ښېو

او س به کا رستا په رضا کړم

چې ماو لید ه ستا حسن

بې ا ختیا ره دې شیدا کړم

چې دې مهر پهما وکړ

له عا لمه دې جدا کړم

مخ دې ورځ زلفی د ې شپه ده

توره شپه به سپین سبا کړم

غم په بر خه د عا شق د ی

زه خدای ستادغم اشنا کړم

عا لم نو ر ی که خبر ې

زه تل ستادمخ ثنا کړم

هغه د م چی له ما بیل شې

په نارو سوې ژړا کړم

قلندر قسم په ر ب خو رم

که نور مینه په بیرا کړم

« ۳۶ »

* ۳ *

* ۲۷۷ *

ستادا سرو لبانو سرتر پایه په زندان کړم

له خلا صیږم یاره بهره داردې د جهان کړم

اور ستاد بیلتون دی زما په ځان چی لګید لی

خپی زه داوښو دچشمانو په نیران کړم

هجردی سوراوردی زه دې وسوسه نا ترسه

گوره په سره اورکی په امان دې پاک سبحان کړ م

ستا د محبت په تاو صورت زما جلیا شو

خلاص می کړه دلبره مجنون طور( دې )گر یزان کړم

ښه هغه مجنون ؤچی یې ځان وسو په اور کی

زه دې له فراقه ود ید ئته په ارمان کړم

تا خو« قلندره» ځا ن مشهور په درست جهان کړ

څه ورکشه وردرومه تقد یر پوه په دابیان کړم



* ۴ *

* ۲۸۳ *

چې رایاد یې سپین غاښونه سپین لبان کړم
درد او ښکو یې نثار تر گریبان کړم
توري زلفې (یې) چې اوریځې کړم په زړه کې
توې داوښکو له چشمانو بریا ران کړم
په شراب کباب د زړه ورلره وا خلم
چې زه خیال دیار په سترگو کې مهمان کړم
داختیار جلب مې وسپاره صحراته
په طلب د آهو زیست پر بیابان کړم
زه مقیم شوم لکه گنج په ویرانه کې
عاشقي په خرابۍ کې آبادان کړم
ستا د سخ تر شمعې ځان قربانومه
سر بازي لکه پتنگ پر دامیدان کړم
لکه غشي غورځوي مې یار له ځانه
چې مطلب یې د کږوو روځو کمان کړم

په شپه‌شمع ستا دوصل ځان ته کښېږدم
سفتګی دسرغلرو په‌چوګان کړم

ږ کڅ ګریوان په‌لعل یاقوتو سره ناست یم
خدای دعشق په کاروبار (کی) بدخشان کړم

چمن عین جهنم دی زه عاصی یم
چی بی ستاله‌مخه‌سخ په ګلستان کړم

که په‌لاس کی‌یی کښېږدی کړم دابرویو
«قلندر» به‌د ډیلی‌شاه جهان کړم

« ۳۸ »

*۲۹۴*

* ۵ *

هسی ږوب تللی په‌غم کی‌د آشنا یم
په‌معنی کی ناپید ا یم که پید ا یم

خدای دي زما په‌خېر په‌عشق کی‌هیڅوک‌ځه که
چی بی سلکه بی وطنه بی مأوا یم

څوک سی‌نشته‌په‌دنیا کی چی عمخوروي
له دي خپله حاله څه وچا ته وا یم

په هردم چې يې ولو ر ته قد م ا خلم
گويا داپه نيت وتلی دغزا يم
دفلک په گردشونو هسې چو ر شو م
چې شهيد گويا پر عين کر بلا يم
خال دنقش په ديوال کی څر گند يږ ی
هسې شا ن ستا په غمو نو مبتلا يم
چې سی نه کيږی سيالی له خوبرويانو
«قلند ر» که مر و ريم هم پخلايم

«۳۹»

* ٦ *

*۳۰۱*

دخپل يا ر له لاسه هسې رنگ خراب يم
دوب لاله غوندې دوينو په گرد اب يم
دوصا ل عمر مې (۱) هيڅ په حساب نه دی
او س په هجر کی دعمر په حساب يم
چې دنيا رو ږی خبری کم رايا دي
ځکه خو بن سدام په چنگ وپه رباب يم

---

(۱) اصل: غم سې.

چې له اوښو مې جارې سيندوسيلاب شو

لاهو کړې دې داو ښو په سېلاب يم

دساقي شراب مې کښېښنا سته په سر کې

زه له پند د ناصح په اجتناب يم

چې مې خوږ وصال دیار له لاسه ووت

زه مفتون ځکه مدام ناست په شراب يم

چې يې لاس له ياره وکښه زهد کاندی

«قلندر» ځکه زاهد تـه پـه عتاب يـم





١١٦

*۱۵*

را بره مه(۱) شی دغم صبا حه یار دې جدا کړ زما له ارواحه(۲)

قلندر ډوب شو دغم په اوښو(۳) لاس و رله ور کړه سیرا ملا حه

*۱٦*

سینه می سوې د عشق په اورده

را باندې تنګه د نیا ترګور ده

اشنا می زلفی په مخ خوری کړی

که مکه پټه په اتلس تور ده(۴)

*۱۷*

را ښکا ره مه شه بی وفا یــا ره

په زړه دې زخمی کړم سینه افګاره

(۱) بښ: دبره (۲) بښ: زما له را حه (۳) بښ: د غم په سیند کی.

(۴) دا څلور یزه د ښایسته خان له قلمي جو نګ نه نقل شو ه،

په ویل کی هسی لفظ تر خوله څېژی
چې تمام عمر کوی پسی ارمان ۴

که دې زړه غواړی له یارسره خبرې
مشغو لا کو ه نادا نه د قرآن

که ویاروته دزړه خبرې وکړې
هغه‌را ز به د رښکاره شی په جهان ۵

چې په عیب دې خبرشی ټو رې‌پټ که
په داد ورهسی نشته دي یاران

اعتبار یی په یاری کې پاته نه دی
اوس یا ران دی په معنی کی غمازان

په لباس‌لباس به‌خوله درته خوږه که
عیب‌جویی به‌دې کوی‌عیب جویان ۶

که دې خپله خوله په واک شی «قلندره!»
د فلك له خو لی به بیا مو سی آ ما ن ۷

*۲*

۳۲۱

سه دروه یاره خپل زړه ته داګو مان

چی به وپا یم بی تازه یوز مان

دبشر زندګانی بی روحه نه وی

ستا بقا ده مسیحا زما دځان

چی تمامه شپه زما په غم کی ژاړي

څه به نه سوځی پرشمع هتنګان

دسرو لبو اورمی هسی په سر بل دی

چی می وسو سراسر پړيځان ومان

دسپین مخ دتورو زلفو په ارزو کی

ګوره را غله خراسان او هندوستان

ستاخونخوا روسترګو هسی زه شهید کړم

چی زیارت لهمی را دروسی انس وجان

ته زما په واویلا نه زهیریږي

دبهار په وخت کی بادوی هم باران

که (دسر)ښېدل بيحده گرانه چارده

متيا څمونو کړو و ساوته آسان

[ژاړه] «قلندره»د ميرا صاحب لهجوره

[نشته]چې په تا به که څوک ېل سرې ارمان

« ۴۲ »

* ۳۳۰ *

*۳*

که څوک وخوري دا دعشق د خوږو سوکے نن

ورڅرگند به شي داخلك په تش پوکے نن

مونده نه شي په جهان کي که يي غواړم

خوبش دمينې په دستورداهسې[شان] توکے نن

په ميزان دعقل لکه را کښېوزي

که يې کړمه په ميزا ن دعقل چوکے نن

توري او ښې تو يو ه دز ړه له کانه

چې چشمې شوي دالماس دبانو نوك نن

نه وچاوته غوږ باسم (۱) نه څه اورم

چې خوړلي يم په زړه دمه‌ئي څوک نن

داجل شوی به واړه بدل نه شي

يو په بله سلامت څه له که څوک نن

چې له سره دي آخردی پر يو تلی

«قلندره» په سر سړ د ه دستارهوک نن



---

اصل : پابسی

و

« ۴۳ »

« ۳۳۷ »

* ۱ *

نه‌مي پر ببردي عشق هرگز دعقل په ورشو

شپه وروځ مي سردي تل دعشق په خرخشو

عقل به دعشق په مخ کي څرنګه د ربیري

کاله ( به ) موږك په مخ کي ودر يږي، د پشو

دادملك دعقل ودانی چي وه له‌مخه‌ېرمی

ورانه په لمبو کړله دعشق داورښیښو

زړه مي له هوسه دجنون په باده مست شو

غابښ د ي شین د هو بش راته تيره شوله‌لشو

عقل که دعشق پر تخته نقش بالحروف کړم

عشق مي په ژړاکه دحرفونو شست وشو

درست مطلب موزه‌د شي له کوتاهه عبارته

تل متن مشکل ګوره‌حل کيږي له‌حاشو

عقل چې پخته شي په نامه د عشق ( يې ) بولي
و'رک شي نوم د سيواله اد خاله د ترشو
فضل د سبحان په «قلندر» د شعرو شو
دا وا په سبب فصيح بليغ ؤ د سا شو

«۴۴»

*۲*

*۳۳۵*

ننګ ونام مې دخا طره بيرون کښېښو
زن مې ځرنګ په ځان نوم د مجنون کښېښو
چې يې زړه په سل پردو کې ؤ سا تالې
اوس يې ستاودې بڼو ته بيرون کښېښو
هومره جوش مې د غم اوښو را پيدا کړ
چې يې طعن په جيحون په سيحون کښېښو
اوس خبر شوم ستا د غم له لذ تونو
چې مې سرخپل دفکرت په زنګون کښېښو
چې مې قدله دا له خم ؤستا په غم کې
سا پر ځان ځکه خطاب د ذوالنون کښېښو

ما چې ستا د عشق په غم کې سبق ووې
په لمبو کې سې دفتر د سکون کښېښېنو

ستا په غم کې هسې رنګ په خوار شوي
زما نې مې په سر باندې ګردون کښېښېنو

تا پر وا د «قلندر» په نا ز و نه کړه
آخر سر يې په زنګون کې محزون کښېښېنو

«۴۵»

*۳۵۳*

*۳*

چې مين شې د دلبر په سرو لبانو
اور به بوري پخپل ځان کاندې يارانو

چې اول سې نصيحت کړ نور عالم ته
اوس سې ځان وته د ربولې ميخوارانو

ستا په در کې سلګان براته بې شماره
د ديدن سهر کوه پر عا شقا نـــو

زه چې ستا وروبيان مخ وته نظر کړم
لب دې سره دې حاجت نه لري د پانو

ستادوروځوپه کمان باندې زخمي شوم

قراري دی له مایو وړه په چشما نو

چې له حسنه دې ښایست گلونو رانیو

ځکه ځای په سینه پاس ونیو یارا نو

چې بهار په تېریدو شه خزان راغی

له خزانه فریاد کا نوې بلبلا نو

ما به ستا دزنی خال په منگول راوور

که مې لار کیدای دزلفو له مارانو

که تا زه چیری په مهر یا د و لای

ما به ولی وو ړ منت د رقیبا نــــو

«قلندر» (دی) تاسیرا په غم کی سوی

لکه وسو ځان پر شمع پتنگا نو

«۴۶»

* ٤ *

* ۳۶۳ *

مخ یې پورې کړې لمبې په عاشقانو

خوشحالي شوه همیشه پر زندیقانو

غمازان یې بی حسابه پرتاوان شوه

چې مجنون غوندې خوب که پر مغیلا نو

خوشحالی به ورما هغه زمان راشی

کەمی شمارکه یاردخپل درلەسکا نو

چی‌مسفر یی لەوجود • ر هنما شو

پر آسما ن کښیښو قد م پیغمبر ا نو

رهبران می‌پاته نەشوه ود لبر ته

زه به هم وریسی کوچ کوم یا رانو

چی‌یی زهر فرمایلی د ی عاشق ته

اوس ژړا بویه پەدرد طبیبانو

(قلندر) زه «قلندر»یم میر اشا هه

اوس‌یی ته حسابوه ستالەیارا نو



«٤٧»

*١*

*٣٧٠*

له مطلوبه خه وفا غواړی طالبه

په ظاهر ورته نزدې با طن غا یبه

ته به خنګه ومطلب (١) وته رسیږې

چې دې هره چاره د ه (٢) ناسنا سبه

یوسربل سریکهمان په بیرته ګرځې (٣)

بی خبرله عجایب له غرا یبه

چې لاس وکاږی هاله په لاس کښېوزې

دطلب لا رده جدا لهمطالبه

په هرلورچې یی را کاږی پسی دروی

دامرکب جداتله نه که له را کبه

(١) بن: خرنګه ومطلوب ...

(٢) بن: هره چاره وینم متا....

(٣) بن: یکهما ن په بیرته ګرځې یو سربل سر

زور هغه بەوسطلب وتەرسیری
کەور وبنیی تە لار دعشق طالبە

اختیار کری ماستا درپخپلە نەدی(۱)
اشارت دی ستاد حسن لە جا نبە

زە دیارد دردسپیو خدمتگاریم
پەداکار کی برا بریم لە صاحبە

عشق دنبکلیو دین مذهب «دقلندر»دی(۲)
نوری مەپوښتە لەدین اەمذاهبە(۳)

«۴۸»

* ۳۷۹ *

*۲*
کە وصال زما لەیارەشی رقیبە
ستا بە هم سینە بیمارەشی رقیبە

کە زە لاس تر غارە گرخم لە دلبرە
دغه غم پر تا (۴) دوبارەشی رقیبە

(۱) بن : ماستا درپەخپلە نەدی اختیار کری .
(۲) بن : دین مذهب دقلندر عشق ددلبردی.
(۳) اصل : لەدین لەمذهبە .
(۴) بن : پەتا.

له بد خو يه به ته هاله(١) گبره واو رې
چې زمين پر تا(٢) همواره شي رقيبه
داشنا له کوڅې (٣) زه کله جارو ځم
که بشره مې هلته خواره شي رقيبه (٤)
مثنا عيال به واړه بې تيغه حلال شي
که مجلس مې له دلداره شي رقيبه (٥)
په سوگند باندې به ستا (٦) باورونه کړم
معلوم داستا له(٧) کرداره شي رقيبه
«قلندر» (٨) به ځان پرتاباندې ها زي کړم
اشارت که له دلداره شي رقيبه (٩)

---

(١) بن: مگر ها له . (٢) ښ: په تا .
(٣) ښ: د دلبر له کو يه
(٤) ښ: که بشرمې هلته خاورې شي رقيبه .
(٥) ښ: په غمازو به بې تيغه مرگ رواشي- که مجلس يې له دلداره شي رقيبه
(٦) ښ: په سوگند به دې هرگز .
(٧) ښ: معلومې دی له... (٨) ښ: زه قلند ر...
(٩) ښ: که مې بخره له ديداره شي رقيبه .

* ۳ *　　　　　　　　　　　　* ۳۸۶ *

ستا جفاشوه پهٔ ما باندی همی زوته
نبو هیرم یاوه لا ئړشم وکوم روته
ستا هجران یمه دي حال ته وسولی
ارزومن شوم په شان ښان له خپله موته

همیشه به وی بی روهٔ بی پلوه
چی دردرومی دستا و لوری ویلوته

نمر سپوږمی له حیا مخ نغاړی په ابر
چی کتی نشی دمخ ستاو پر توته

دا خزان څه خزان نه دی چی لیده شی
تبتبدلی دی چمن دیارله چونه
دم په دم می لاخو ناب دزړه زیا تیږی
چی می نه کوت دا شنادسترگونوته

چی سحر سحر فریاد کړي «قلندره»
بلبلا نو تعلیم واخیست ستاله سوته

*۳۹۳*

*م*

دا دنیا سی کړه تماشه لټ په لټه

بیامی نه موندیوا شنا یکی بی وتیه

تهٔ ساو ډیروا و بنو ته نظر کړه

چی تمام جهان سی کړ په ا وبنو ختمه

لکه لیندی چی لینده لهورایه ولی (۱)

هسی یری ایستم ستا هجر لکه ستهه (۲)

عزیزا نورانه لا مروا رو په سر کړ

خدای په لار کی دچا یری مه پاسی ختمه (۳)

---

(۱) نس: لکه لیندی چی غشی ولی له ورایه.

(۲) نس: هجر زه له ستهه.

(۳) نس: عزیزانو وارو لاس رانه په سر کړه* الهی د هیچا مه پریبا سی ختمه

اندا سو نه سی تمام ذری ذ ري شوه

چې پرو لو يد ه‌د هجر لويه گټه (۱)

دسیرادقبرځای دی (۲) په لا هور کی

«قلند ره» (۳) پسی وا خله اته پټه

«۵۱»

*۳۹۹* *۵*

اي زما د زړه ا بها جه

زه يم د پړ د ر ته محتا جه

لږ درب د پاره غوږ کړه

محبوبا نا زکسزا جه

---

(۱) ښ : هر اند ا م ( سی ) لکه ما ت همی ز خمی د ی
پر ی‌ابو يدلی ستا د هجر لو يه گټه

(۲) ښ : دسیرا صاحب روضه ده.

(۳) ښ : شا دقلند ره ...

ستاد دره خاورو خوښ یم

هی توبه له تخته تا جه

د رقیب دې منت ما ر کړم

خنګه بدیې اِحتیا جه

تار یك زړه می منور کړه

ماه چهره رخسار سِرّاجه

زړه می دوب شوو تی نه شی

د غمو نو له امو اجه

چی اوده بخت می بید ار شو

نه او س نا رې کړه دجاجه

درست جها ن دې مسخر کړه

څوك خلا صیږی ستاله باجه

تر سنګ سخت چی لا په خوی (بی)

«قلندر» د زړه زجا جه

«۵۴»

*۳۰۸* *۶*

زړه مې هسې رنګ افګار دی (۱) ستاله د رده

هم مې لب شکر ګدا ردی ستا له درده

ځان مې هسې شان بيمار دی دل آرامه

چې و مرګ ته طلبګار دی ستا له درده

چې مې بخره (۲) ستادغم مولا نصيب کړه

په عالم (۳) مې افتخار دی ستا له درده

څه حاجت دی (۴) دو يلو چې يې وايم

خودمې حال درته اظهار دی ستا له درده

دا ظاهر صورت مې خود درته ښکاره دی

هم په زړه کې مې پرهار دی ستا له درده

---

(۱) ښ: اوګار شه.

(۲) اصل: برخه (ښ).

(۳) ښ: په جهان.

(۴) ښ. حاجت کوم و

چې مدام مې او ښې سرې په سخ بهیږي
په گریوان مې لاله زاردی ستاله درده

زه خو ستا په درد وغم کې لویږې سوسم
که د نوروگړی عاردی ستاله درده

ستا په د رکې قند رله خلکو بیل شو (۱)
له وحشیو سره شما ردی ستا لـه د رد ه

«۵۳»

*۷*

*۳۱۶*

هغه دم شم زه آزاد له بله بنده
چې مې بند شي تار دزلفو له کمنده

همې خوند مې داشنا په درکې بیاسوند
چې مې قند په تالو، حلق کې شو بې خونده (۲)

---

(۱) نس : له خلکه بیل شه

(۲) نس : شهد قند مې په تالو کې شو وناخونده.

لکه سنبک چې په پردو کې (۱) نه پټیږي

ستاد درگدایي هسې ده له خونده (۲)

په سوگند (۳) سره وانو ښتم له عشقه

اوس توبه کړم نصوحا زه له سوگنده (۴)

دا ناصح راته مدام کاندي پندونه (۵)

میني زه کړم بې پروا له دغه پنده

ددې خلکو په نظر کې (٦) نا پسند وي

چې جفا جور د یار که نا پسنده

---

(۱) - نس : لکه مسبک په سل پردو کې.

(۲) - نس : په خونده.

(۳) - نس : په هزار سوگنده.

(۴) - نس : اوسې توبه نصوحه وکړه سوگنده.

(۵) - نس : پندونه کاندي.

(٦) نس. - دوگړي ونظرته.

په دادور سر بلند هغه عاشق وی (۱)
چې دیار په در دوغم وی سر بلنده

«قلندر» څکه دیار په رضا دروسم (۲)
چې غلام بې امری نه که له خاونده

«۵۴»

*۸*

*۳۲۳*

څومانی په پورته څی دچا بلنده
هوسره ښکته و رته کښېږي لو یه کند

غلط سه شه دفلک په شنه کندونه (۳)
په خرقه کی گرځوی هزار کمنده

خرڅوی هزار دیناره په کودړي
چې امید که گدایا ن له دولت منده (۴)

---

(۱) بن : هغه شما ریږی.

(۲) بن : دروسی .

(۳) اصل : په سوگندونه (بن).

(۴) بن : دسروزرو نقدی پلوری په کودړو .
چې امید که ددنیاله دولتمنده

د ادنیا په مثال غول بیابانه

هسی سه د رومه هوښیاره خردمنده

طامع سه‌شه دفلك و سرسا یی ته

همیشه‌به‌سرگردان یی لکه ژرنده

دشاهانوله‌زربفتو(۱)خلعتونو (۲)

زساخوینه ده خرقه (۳) په‌سل پیوند‌ه

دمیرا په‌ذر هیچیری قدم مه‌ږده

ستاچی نه‌زده (۴) قلندره خوشامنده

---

(۱)بن: زرکشو

(۲) اصل: خصلتونو .

(۳ )بن: ماقه ښه ده پالکی په ...

(۴ ) بن: چی دې نه‌زده .

*٩*

*٤٣١*

چی دې جمع نن په غولی خلکه ده

دا گو یا زما دقتل معر که ده.

عاشقان لکه مرغان پکی پر کیږی

سپینه خوله دې گویا عین ایښی پر که ده

سرو مال می د بوسی په بهادر کړ

نور دې پا ته راته وایه هڅه لیکه د ه.

بی دوصل له تعویذه به روغ نه شم

ما خوړلی د هجران پده ړ که ده.

که نور هیڅ در پاته نه‌شوه «قلند ره»

د میرا آغـــــــا ثنا دې تلکه ده

*٤٣٦*

* ١٠ *

سینه می درسته له تاوه جله ده
دعشق لمبه می په زړه کی بله ده

د اوه چی ژاړم خلك دې خاندی
زه لیونی یم که دنیا لله ده

څنګه لمبه می په زړه کی بله ده
را ته ولاړه دلیندیو ډله ده (١)

زما دصبر بیړی ډوبه شوه ستا تـه
دسینی هسی نـا تـاره چله ده

د اوه چی ژ اړم په محبت کی
ژړا می بر خه هم له ازله ده

ګریوان په وینو سو را لوده ګرځم
ښادی می واړه په غم بدله ده

---

(١) اصل: چې راته ولاړه دانجنو ډله ده (بن) .

قاصده ورشه خبر یې ورا وره

چې د راتلو وعده یې کله ده

«قلندر» دروسې نیت یې د کوچ دی

کله یې تاته سیرا معطله ده (۱)

---

(۱) داغزله دبنایسته خان په جونګ کې په نیمګړې توګه دا مې ضبط ده:

دعشق لمبه مې په زړه کې بله ده

سینه مې د ر ښته له تاوه جله ده

زه چې ژړا کړم خلکه خاندي

زه لیو نی یم که د نیا بله ده

هزارشتې مې په زړه کې لکی دی

را ته ولاړه د لیند یو د له ده

«قلندر» دروسې نیت یې د کوچ دی

کله یې تا ته مهرا معطله ده

*۳۳۳*

*۱۱*

خوليلا غوندى داستا جانانه‌نه ده

د مجنون په شان د ې ځاى‌ويرانه نه ده

چى دخال وخط خبرى پكى نه‌وي

د عشاقو په كار داترا نه‌نه ده

ممند رتلاى ېردى لاركله شى دعقل

دا د عشق مقدمه فرزا نه نه‌ده

چى دعشق دوزند كارونه پكى نه‌وى

ستا دزړه خانه هرګز ودانه نه ده

له سره بازه سره رازكاندي ېوه‌ېږم

داخبره ده ښكا ره پنهانه نه ده

چى شها په مر ښندل سره خوښېوي

داد سر سا تنه هيڅ بهانه نه‌ده

ستا له زړه به غم ورځه ځى«قلندره»

چى محبو به‌درته‌بيا خندانه نه‌ده

*١٢* *٣٥١*

كه خبر شى دمركوتبى له ناتاره

لاس به واخلى دنابودي له روزگاره ( ١ )

ترمراد ه يى څوك نه دي رسولى

دا د نيا ده نا مرا د ه بى مد اره

څو مرونه يى ترخاو رو لاندى دوب كړه

دا دنياده ( ٢ )نبايسته ناوى مكاره

---

( ١ ) بن : لا س به واكړي د دنياله كا ر و باره .

( ٢ ) بن :لادنياده.



١٢٣

خوله چې وازه شي دنيا ورپورې خاندي

ددنيا د پاره مه خانده بيکاره

د د نيا مينه خو نی تو ره بلا ده

دبلا مخې لهمه ورځه (۱) هوښياره

څو دې لاس رسيږی هومره ځنی تښته

د نيا تو ر ه سرېتې ده آدم خواره

دنيا چول بيا با نيد ه پکی مه ځه (۲)

ځا ن پر بيا سې ترکمره ترحصاره

په دنيا پسې شاطر غوندې جار وزې

ولی نه ږدې يوقدم د دين دپاره (۳)

---

(۱) ښ: مه دروسه

(۲) ښ: دنيا غول بيا بانيد ه پسی مه ځه

(۳) دا بيت دښا پسته خان له جونګت نه نقل شو.

دحلال دحرام نه کوې پوهېتنه

هسې څغلی لکه او بڼ څې په سهاره (۱)

سودا گريې وا ړه سروهلی لاړه

د ريغه دريغه د د نياپوچه بازاره (۲)

اکه ملی هوسره خلک څنی ليږ د ي

يو ساعت نه ده دنيا په چا قراره (۳)

دادنياسر داره سپی ده «قلندره»

دمرداري سپی تولمړی په مرداره

---

(۱) نښ: دحرامود حلالونه کوي پوښتنه ـ هسې څغلی لکه اوښه بې سهاره

(۲) نښ : ددنيا پوخه.

(۳) دابيت له ښايسته خان جو نګ نه نقل شو.

* ٣٦٣ *      * ١٣ *

ناست يم ستالهلاسه زره پاره سينه افگاره
تهله مانه هه غوارې فلكه ستمگاره

ته يوسوش گهرك بى لايق نه يى دگلونو
ولى بلبلان شرې كم بخته له گلزاره

يار دى لهمابيل كړ تاخو هيڅ بنادي ونه كړه
وايه څه دي وكتل رقيبه دل آزاره

يودې دهجران پهتناره كى لوغړن كړم
بل دې درقيب سينه رايخه كړه سياه كاره (١)

هريو گل بهخارشى پهلمن زما څرخيږى
سير دگلونو چى كوم بىخپله ياره (٢)

---

(١) دابيت دبنا يستهخان له جونگ نه نقلشوه

(٢) بش: هر يو گل دې خارشىپه لمنه را څرخيږى
سيل دگلو چى كوم بى خپله ياره

ته چې دوفا طمع کوې له‌سروقده ( ۱ )
سرو به ( ۲ ) هیچالیدلی نه وی میوه داره

غوخ دې«قلندر» په‌تیغ دهجر کړ بی نیازه ( ۳ )
مه کـوه میر انو ره جفا د ر ب د پـا ره

« ٦٠ »

* ۲۴ * * ۳۷۰ *

سراول په‌سینه کی ته‌خپل ذ ری‌ذری کړه
گوره پس له هغه و دلبروته ناری کړه

هغخ پرتا اثر نه کا زما تاوده آهونه
ځکه په دوه لاسه می گریوان پاري پاري کړه

---

( ۱ ) بن : سروقدو.

( ۲ ) بن : سروپه‌به.

( ۳ ) بن : کړ دلبره.

بد نصیب ، له نزدې یاره کرسه لېرې

تل له دې غمه په وینو سترګی سرې کړه

راپسی دې بدهجران کیء نه خلاصیږم

ته رقیبه دهجران را ته ئاری کړه

نه خلاصیږم چی نز دی درشم دلبره

اوس له ورایه را ته ګوره ننداری کړه

سپینی سترګی دې وتلی وسباته

رحم وکړه رقیب بیرته ګذاری کړه

«قلندر» دې مبتلا په محبت شو

وربشکاره سترګی میراته دوباری کړه



*۳۷۷*　　*۱۵*

تل کوم په‌داطواف‌د مرمزار ز ه
چی قبول‌شم دخوبانوپه‌دربار(۱) زه
هیڅ توبه دضیافت راځخه نشته
شرمنده یمه تریار پورې‌بسیار زه
بی‌دشوندوله‌چړی به‌یی روغ نه‌شم
چی‌خوولی یم دیار دزلفو مار ز د
ونا صح ته به‌هاله مغرور ښکاره شم
که د زړه ورته ښکاره کړمه پرهار زه
له خوبا نو چی کوم دو فاطمع
کتوری غوارم د زانوله‌قطار زه
تعلق سی‌دزړه هیڅ ور پوری نشته
که مشغول یم‌ددنیا په‌کاروبار زه

---

(۱) اصل:مزار

یارپه پته خوله خبردیار وانه خوست

محکه شومه دخپل یار په استفسارزه

چی اختیار می دا ستوګی پکی نشته

مسافر ګنمه ځان په خپل دیار ز ه

قلندر په ند امت یم تل د ا و چو

چی پییم د رد مژګانو په هر تار ز ه

«٦٣»

*١٦* *٢٨٢*

له از له را په هیسی تر هنوزه

سریکار می دی دعشق له ساز(و)سوزه (١)

دخوبانو په کوڅه کی رقیب خاردی

په جنت کی زرغون مه شی(٢) ګنده خو زه

---

(١) بن: سر یکار می شه ستادعشق له درده سوزه.

(٢)بن : مه شه.

جکي جکي روی دخدای دي مخ خرگند کړه

بل خنجر دمدهی په سینه بوزه

چی خلعت دعاشقی يی راته واغوست

بی پروا یم (۱) له شری له شمند روزه

استسقا مکر دګلو شوه قبوله

دشبنم په دود و رهیږم شب وروزه

په کوڅه کی امیدوار درته ولاړ یم

که ته ښه کړي یاره ماد رسره بوزه

اي ميرا په ننواتی یی قبول کړه

« قلندر» درته ولاړ پریکړي بوزه (۲)

«٦٣»

*٣٩١*　　　　*١٧*

چی عاشق شی دهغه څه له هوسه

نه خلا صیږی د غمونه له جو سه (۳)

---

(۱) بش : بی پرواشم

(۲) اصل : قلندر درته ولاړ حدیث په بوزه(بش).

(۳) الف : چی عاشق شي د،غه څه کار له هوسه

وتای نه شي دغمونو له جوسه

نه دشپې آرام اری او نه دورځې

نه یې بیره له‌شحنه نه‌له عسسه (۱)

دخپل زړه په اورعاشق بی دریغه سوځی

لولپه د ه خپله ځا له اه قفسه (۲)

وهغوته یار پخپله روی گرد ان شی

چی شری که برا بره له ا طلسه

هیڅ حجاب داشنا یافو په میان نشته

ته پخپله خپل حجاب یی (۳) بوالهوسه

قراری نا قراری (۴) دیا ربه غم ده

ته تعلیم واخله دعشق له مدرسه

---

(۱) دابیت داستاد له نسخی نقل شو .

(۲) دابیت داستادله نسخی نقل شو.

(۳) الف : شوې ، بن : هیڅ حجاب د ا شنا په میان کی نشته

(۴) بن : بی قراری .

ستا دسترګو مقتو لان مطلب ته رسی

کله قتل ستا دسترګو لمی عبثه

چی دیار په جدایی غم و نه خوري

« قلندر » که هزار حیف له هرنفسه (۱)

«۶۴»

*۳۹۹* *۱۸*

چی می زړه په تورو زُلفو مبتلا شه

همېشه لکه جرس په و او یلا شه

ستا دمېنی په آسمان کی رامعلوم شه (۲)

لکه نمر هسی زما صورت رسوا شه

---

(۱) الف : چی دیار په یادیې نه ولمی له شونډو

«قلندر» که هزار حیف له هرنفسه

بن : چی دیارپه جدایی یې خم و نه خور

(۲) بن : ستا د مینی په آسمان کی مه جبینه .

که بندی د ې په قفس کی د هجران کړم

شکر خیال دمرووقدوسی عصاشه

چی یی ستانو خیز بهار ولید دحسن

فراري له زړه نه صبر دپا رسا شه

ډیر رمزونه که سحر بلبل پر ګلو ( ۱ )

قلندر د استا په غم سر په صحرا شه(۲)

«٦٥»

* ۵۰۳ *　　　*۱۹*

وسی لیدسپین مخ د سهرو یا نوسپین سباشه

د وه یی توري زلفی را ښکاره شوي زربیګا شه

---

( ۱) نبن: په ګلو.

( ۲) نبن ; قلندر که د سیراله غمه سر په صحراشه.

ما چې فکر وکړ ستا دمیو ولبانو

خوندمې څښی رانیوتاج په سرمې د هماشه

کله به نظر را باندې وکړې د چشمانو

دادې لوی احسان دی چې شین خال دې رانماشه

هیڅ عزت مې نشته ستا په در کې زما جانه

دا رنګه بیوخته چې ترمیان رقیب پیداشه

خدای که مې روزی که ستا دیدن دسر په سترګو

سر به ترې قربان کړم (که) دیدن دې مهیاشه

یم زه په داطمع چې میرا به زما یارشی

ګوره ناز پروره «قلندر» پر تاشیدا شه

---

د پرستا په طلب کې «قلندر» دې لوقلندر کړم

ګرځم سر ګردانه چې میرا له ما جدا شه

«٦»

* ٥١١ * * ٢٠ *

له ماضی عمره به خه وایم چی تېر شه

خوب لیده وولکه تېرشو هسی هېرشه

دمجلس یاران می تار په تار خپاره شوه(١)

غم دهجر یی زما تر زړه چاپیر شه

روسبنی یاران که غواړی مینده نه شی(٢)

رونیا روځ را باندی شپه شوله اند یرشه

---

* اصل :تور .

(١) ب ا : مجلسیان یی واړه تار په تار خواره شوه .

(٢) ب ا : لرغونی یاران که غواړې موندی نه شی .

مخ دوصل یی په سل پرده و کی پټ کړ (۱)

اوس یی غم دجد ا ییږرا برسېر شه

قبرستان لره له شرمه ورتلای نه شم

د یارانو سپین تولی تر خاورو ز یر شه

د هجران غیشی می ډېر په سینه یووړه

له یاری (نه) می زړه تر یخ لکه ګناه هیرشه

د رست جهان دزمانی له دسته ژاړی

که پرسا د فلك د ور په بل پیرشه

که یوه ګړی ښادی وی په جها ن کی

غم دهجر بیاتر کال را باندې ډېر شه

وار په وار دهراشنا په حال خبرشوم

واشه عمر می ترڅه پرو کا لو تېر شه

«قلندره» ګوښه شه له نو رو خلکو (۲)

دد ی دور له یارانو می زړه سیر (۳) شه

---

(۱) ب ا : ونغښت .

(۲) ب ا : قلندره شه ګوښه له روغه خلکه

(۳) ب ا : زړه تور .

*٥٢١*　　　　*٢١*

د اشناله دېره غمه سی طاعون شه

له اندوهه سی ذرېذرې لړمون شه

د وفا په طلب گرځم جفا مومم

په نصیب سی عالم واړه دگرگون شه

جگې جگې دلاسامی د زړه وکړه

په ژړا می زړه له ستر گونه بیرون(١)شه

د طبیب غرض زما په مرض نشته

د خپل یارد مینی غم سی اندرون شه

نن د جورو جفا وختی لبنگری

ناگهانه د وفا د ر(٢)بیرون شه

د رنځور خبر په شپه وا خله طبیبه

ترسبا پورې به ورنه شی زبون شه(٣)

عاشقان په عاشقی کی سر فواز شوه

«قلندر» په عاشقی کی سرنگون شه

---

(١)نس: را بیرون .

(٢)اصل: دجفا ددر . (نس)

(٣)نس: ترسبا به ورییِ نه یی شی زبون شه .

*٥٢٨*　　　　*٢٢*

بر برایشه زما د خاطر باغه

خان خبر کړه (١) دبلبل دزړه له داغه

همیشه دې (٢)ودیدن ته منتظریم

شه چې راغلی اې زمادزړه فراغه

خوشحالی به اوس کوم ترهغه پورې

څو دې ووینم په سترګو اې ځراغه

مستانه شوم ستا دسرو شونډو دمیو(٣)

دامستی به می ونه وځی له د ما غه(٤)

---

(١)بن: چې خبرشې.

(٢) بن: بی .

(٣ ) بن: دلبو له شرابو .

(٤ )اصل: تردماغه(بن).

پرورش دعشق بازی‌سیخانه گوره
خبرنه شو بوا نهوس‌له‌دێ‌سباغه (۱)
چی‌هوک ورشی مخموری اره دلبره
بندیوان شی ، لکه‌ناست‌وی له دوباغه(۲)
«قلندر» تل دمیرا ولورته‌تله کرم (۳)
لکه‌هوک چی مدام تله‌کاندی‌له‌باغه

«٦٩»

*٥٣٥* *٢٣*

تل روزگارکوم معتاد هجر له‌فراقه
مخ دێ راښکاره کره‌گوتی‌وکاږه له‌ساقه
دپر دێ منتونه کرم دلبره راته‌گوره
پرپرده درقیب خویونه واچوه له وا قه

---

(۱) بن: پرور ش دعاشقیي مېخانه ده
خبرمه شه‌مهرویان له‌دێ دم ساغه
(۲) دابمت له‌ښایسته‌خان جونګ‌نه‌نقل شو .
(۳) بن : زه قلندر تل دمیرا په‌طمع تله کرم

سخ کەرابنکارە کړی زماوینکی بە کړي وچی
خدای دي وە دلبرە تەاحسان کوە مشتاقە
مست دي کړم لەورایە چی نظر دي راتەوکړ
خوی دعاشقانو همیشە وي لە نواقە
گفت راسرە سە کړە ولي یادە سی خواری کړە
اوس دي برې بیاموندپرمابانډی لەشواقە
رحم کړە دلبرە زە دي سرشومە لەدردە
خوی دمعشوقو دی مینە کاندی لەعشاقە
سرمی درقربان شە زمایارە هزار محلە
یا می کړە مهجور یا یی واصل کړمستالە ساقە
سر دي قلندر رهجدا یی کړ میرا شاه
وصل دي بهتر دی دعراق لەنیە تریاقە

«۷۰»

*۳۳۵*

*۳۴*

زمانە چی ما وتا سرە فنا کە
هغە دم بە قیامت موږتە هویدا کە

دې صورت له بقانشته وبه سرينه

ترو دې څه له غوږ چاري ناروا که

دا ويا او دا تيا کالو په عمر

دايمان او داسلام چاري خطا که

دد نيا په کار کې هسې شان مشغول يې وې (۱)

سل رو بې چې شي پوره د وه سو غم دا که

بل ز کوة او سر سايه نه ور کوينه

دغه واړه پرده فرض نه يې ادا که

چې په وقت کې دېيري قريب الموت شې

لا پښوا دې ژبه بنده ستا مولا که

له د ينه اروبه روح واخلي په آسانه

پريې دينو پاندې تېره به بلا که

د ی په هرمنزل ايښواوبوښتېد وشي

وروړ عزيز پسې ناري وهې ژړا که

په لحد کې چې يې کښېښېږدې څني لېږدي

دې پوازې هلته پر پږدې ترينه شاکه



(١)

دغه حال په هرمردهدی« قلندر»
تف لعنت شه چې به مینه پر دنیا کړه

«۷۱»

*۵۵۳*　*۲۵*

چې نسیم یې لفافه دګل وا کړه
آهو څای به په میدان کې د خطا کړه
چې وصال دخپل اشنا د چارو زی شی
ددنیا و نعمتونو ته به شا کړه
ستاد پا ره قبلوم د رقیب جو ر
مګر بې سببه څوک دچا پروا کړه
په راتله دې دخط حسن څو چنده شی
لاقدری شی چې کتا ب څوک محاشا کړه
چې څوک وچ په ریاضت اوپه تقوا شی
زمانه یې لکه میاشت انګشت نما کړه
هوسره لار کړه قلندر د امید غوټه
چې یې پښه شوه دنظرباندې تنها کړه



١٦٣

*۵۰۹*　　　*۲۶*

زړه مې له غمونو د يار ژ ير لکه رباب که
ډوب يې له حسرته دغمونو په ګرداب که
مست دې کړم دلبره په نظر دستو ګو ګوره
خانده هوسيږه رقيب اوس دې په عذاب که
چاه دې دزنخ دی چې زمزم نه ور رسيږي
ځکه خوار عاشق دې مستانه، واله، خراب که
ګوره چې رقيب دې رقيبي کا ندی دلبره
ځکه عندليب دې دهجران په اور کباب که
ستا ددوو لبانو ميخانه(ده) هستي ګرمه
ګوره خوار عاشق ته چې دې سير په دا شراب که
زه دې دوصال په طمع ګرځمه دلبره
مخ دې له ماخواره ولې پټ په ډير شتاب که
ماچې کاوه فخر ستا په مخ پرنورو ښکليو
دامې اوس سزاده چې دې پټ دمخ آفتاب که

سا و یل «قلندر» به له میرا سره روان شم
مخ د رقیب تور شه جوړ د هجر یې اسباب که

«۷۳»

*۲۷* *۵٦۷*

زلفې دې تورتم کړ خوار عاشق دې باندې غل که
مخ دې سپین سبا کړ خیال دې اور(ور) باندې بل که
شپه وورځ پناه یم ستا د مخ له شغلو یاره
څکه (دې) د یدار کړم چې رقیب د دې دځان مل که
وسوم ستا د حسن په سیزان (۱) کې زما چاره
ترس را باندې نه کړې چې څیگر دې زما جل که
زه یم سمندر ستا د هجران په لمبو باندې
سوځم ایرې کېږم چې دې اور را باندې بل که
هسې شان فریاد کړم لکه غم کاندې په پنډ کې
گوره عندلیب ته چې آواز په ها و هل که

---

(۱) ښایی دا کلمه په اصل کې نیران وي .

سرې چشمانې ناست یم لکه ټېرې وی په بر کی
چام دسروِ لبانودې له سره زما تل که
خوندسی پاته نه شو ځنکدن را باندې راغې
ستا داشنو خالونو درست صورت زما بدل که
هیر به زمانه شی ترقیامته پورې یاره
چاه دې دزنخ دی دا جهان یی تناول که
داخو «قلندر» یم چی داستا په غم کی پایم
سخت یم چی لانه سرم چی دې سخ په بلې قبل که

« ۷۴ »

* ۵۷۶ *
* ۲۸ *

لەقانونه سی رنځ لاړ طبیبان خه که
دهجران له غمه مرمه درمان خه که
خوار مهجور په خپل وطن (کی) پردیسی که
بی یوسفه یعقوب شهر کنعان خه که
چی په دور دبهار آ هونه کاږې
عندلیب به په نوبت دخزان خه که

چې یارنه وینم په سترګو، رندې ښې دی

څوك بې رخته بې اسبابه د کان څه کړه

له فردوسه څوك وتې شي جهنم ته

تخت و تاج ستاد دوهی سلنګان څه کړه

چې زغملای نه شي تاب د جد ایږې

ځان چې وسېزي په اور پتنګان څه کړه

چې د خپلې خوبې د رلری په غوږ کې

جواهر دجو هریانو ترکان څه کړه

ستاله غمه چې له ځانه خبرنه دی

اې میرا «قلندر» غم دجهان څه کړه

«۷۵»



۸

زاهدان کرامدی نقلونه، غافلان ولې خو بونه کړه

دنیا واړه فانی ده، داعالم ولې پرې مینه کړه



هغه اووه دی دوزخونه، رنګارنګ یی عذا بونه
کافران به پکی سوځی پرې ګرم به دو زخو نه که

هم اته دی جنتونه، رنګا رنګ یی نعمتونه
خوشحالی دې مو منان که چی یی سپرلی په براقونه که

دا دګور خونه تاریکه، نری لاریی ده باریکه
هر مومن چې ایمان تېر که ګلستان به پری ګاونه که

قلندر دې کاندی ذکر، شپه ورځ دې کاندی فکر
بیا هاله دې خوشحالی که چی مودی خبر په ...(۱) که



(۱) دا برخه ونه لوستل شوه.



۱۶۸

«٧٦»

*٣٠*

*٥٨٩*

سزسێ دێ پەتورە سرە درست ذرێ ذرێ کە

بیادێ سرفراز دخپل هجران پەقرقرێ کە

ماویل زە بەاوسم ستا لە سپو سرەدلبرە

بیرتە لارم درستا چێغماز پەاجارێ کە

تامی پرتندی (باندی)دغم ناری-سوری کڕێ

مخ می پە خاپیرو دفراق یارێ یارێ کە

ورکت دێ کرم دلبرە چێدی سترگی پرما سرێ کڕێ

ستا خولە چێلەخیالە ورقیب وتەارزی کە

دامی پەمیثاق کیبرخە وریدە دلبرە

خیال چێ دێ لە هجرە زساخپگرپارێپاری کە

زەلا«قلندر» یم چێلە هجرەدێ روزگار کرم

کل عالم سیر اتاهم زیا پەنندارێ کە

*۵۹۵*

*۳۱*

مخ دې لکه شمع له فانوسه تجلی که

ځکه دې عاشق لکه پتنګ باندې حملی که

ډېر دې سمندر غوندې په عشق کی په اور وسوه

ځکه دې عالم ثنا صفت دورې خولی که

ته چی شایسته یې پرسا خواردې نظربویه

تن دې په ناسوت کی سور پیزوان دې مسئلی که

ډیر په ملکوت کی ستا ثنا کاندی دلبره

چیم اوهې لاګوره چی په خه شان تجلی که

هیڅ موجود به نه وی چی له تا به خبرنه وی

راشه اقرار ګوره چی ارواح زما بلي که

مخ دې جوړ چراغ دی زه پتنګ دې پرې جلیا کړم

شه ده معشوقه عاشق پسی چی وا ویلی که

خال دې راښکاره کړ بیا دې ژرله ما پناه کړ

خوی دی دحجاب کړزده، داو اوه‌د لیلی که

زه به پهسحشر کی تاهوری غوارم دلبره
شمار د مومنانو کهمی خدای دقبیلی که
دوبشوه«قلندر »ستادمحمونوپهدر یاب کی
تل دې خوشحالی شاه میرا پهشا ل شملی که

«۷۸»

*۳۲* *۶۰۳*

ستر گی (دې )لهورایه نن وساته روښنایی که
خال وخط دې دواړه دښایست ښه رسوایی که
بدسوی تور مخی دارقیب درتهولا ړدی
گوره خان سا ته ترې زسا و ستا بهجدا یی که
تل د غما زانو پهسبب عاشق مهجور وی
خهلهخوک بی ځایه دخوبانو اشنایی که
مهاخله پندونه درقیب چی درته کاندی
غم بهد ې پوهیږم مالهواره سودایی که
ماویل زه به اور دسینی واچوم وزره ته
صبر رانه لاړشو چی هجران دې ندایی که

زړه سی ستا د هجر غم الم توره تبی کی ه

خدای دې تاله ماسره نن پټ په رضایی که

ولی شوې بی صبره قلندره څه خو هوښ کړ ه

دامیرا طبیب دی ستاد رنځ بهدوایی که

خدای دې زماو ستا صلح وساو کڅ لری سیر ا

گو ره «قلندره» چی بی ستر گو بینا یی که

«۷۹»

*۶۱۲* * ۳۳ *

که مطلب لرې دیار له ځانه دانگه

لکه بیدمجنون تل ورپسی زانگه

هغه کله دعاشقو په شماره وي

چی غونچی غوندې بی نه وي دزړه ځانگه

په آخر هغه سپاهی له اسه پریوځی

چی همېش کاندی سپرلی بی واگه تانگه

چی په یو دم کی ژړاپه بل خندا که

نپو هیږم د فلک په د غه سا نگه



۱۷۳

دوصال غواص یی هیڅ ورخبرنه شو

داد هجر ببری تېره شوه له تیانګه

چې کشتی مدام له هجره دیار کاندي

نه ویر یږي «قلندر» له زسری پړا نګه

«۸۰»

*۳۴* *۶۱۸*

که می داخل خواست قبول کړي ذوا لجلاله

میرا را و لی قا د ره بر کما له

بی هوده دا روسی څه له کړی طبیبه

روغ به نه‌شم بی له‌زلفو بی له‌خاله

وعده و که دخور وخو چی به درشم

ترمیا ن تېر ي‌ځو ځو شپی که ځو ځو کا له

که په سرا شنای مونده شی خوارزان دی

ز ه تېر شوی یم تر سره هم تر ما له

دهجران تر کمر پریوتم زخمی شوم

دو صال په طمع نامت یم بی مجاله

ستا هجران خورونا روخ په ماتیاره کړه
خدای دې راوله سیراصاحب جماله
«قلندر» دبیلتانه روژ وزهیر کړ
را ته بره شه میرادعید هلا له

«۸۱»

*۶۲۵*

*۳۵*

له ناصحه نصیحت غوږ باسم کله
دیار مینه له خاطره باسم کله
ماچی سر په غړوندی کړ ستاد مینی
سردبل په غړوندی کښیباسم کله
که هر خویی نښانه شم وجفاته
زه خپل زړه ته داجفا پری باسم کله
که سی سل ځله په روځ ترټی له دره
زه به ستاله دره مخ جار باسم کله
داستادر داستا کوخه زما وطن دی
بی دې دره زه بل در پری باسم کله

په طلب کی داشما که می سردروسی

په دا کار کی به له سرهراسم کله

د دیدن (د) پیالی دورته به گورم

چی بې راوری «قلندر» له قاسم کله

«۸۲»

*۳٦*

*٦۳۲*

هغو بیاموندہ آرام له دل آ راسه

چی و تلی د ی له ننگه هم لـه نا مه

چی یی کړی درست جهان زیرنگین دی

څه به وایم د د لبر له حسنه نا سه

بی دلبو لهسرهمه به روغ نه شم

چی زخمی یم د مژگا نو له آلا سه

زه دیار په غم کی درسته د نیا و ینم

لا به کله په سا راشې د جم جا مه

لذ تونه دجها ن به باندې هیر کړم

کهدیار دغم خوند رایشی تر کامه

سێیا فرار لە«قلندرە» نەبائیری

کلەتیبینتە خاوند کاندی لەغلامە

«٨٣»

*٨٣٦*

*٣٧*

سپین رخسار دي وایی سپین سبا شەقمە
تور کا کل دي وایی تورە شپە دە تمە

دسبا او دبیگاە ترمیان حیران یم
نپوهیږم چی عمل وکړم پە کومە

سرینده غوندی قی کړی کولمی ناستیم
دهجران نغمی می کاږی زیروبمە

گنجینه شوم ستا دمینی لە دولتە
اژدهار را باندی گرځی دمبدمە

چی میرا درسرە نەوی قلندرە
تەچی سوات لرە ورځی عذر دي کومە

قلندر پە کومە پوزە لارشی سوات تە
چی میرایی همراە نەوی هوس کومە

دسیرا صاحب لەجورد «قاندلار»

دایەو لارم (١) والسلام علیکمە

«٨٤»

*٣٨*

*٦٣٥*

دسحربادە خوشبو نسیمە (٢)

کە چېری لارشی دیار پەسیمە (٣)

ورتە سی عرض کړە درب دپارە

هزار سلامە هزار تعظیمە (٤)

پس لە سلاسە ورتە و وایە

چې پە هیکل کی اشال عدیمە

---

(١) اصل: دایو لار.

(٢) بن: خوشبوی.

(٣) بن: ترسیمە.

(٤) بن: پس لە سلامە دا ورتە عرض کړە

هزار سلامە تېرسو تعظیمە

له خلکو گو ښې کناره خوښ يم

لږ مون و رژلی سينه(۱)د و ه نيمه

ز ه دې په اورکی د هجران وسوم

که سی رها کړې له دی جحيمه

يا«قلندر» کړی له‌ميرا وصل

يا يی په‌گور کړې ربه رحيمه

«۸۵»

۳۹ ۶۵۱

که خبر شی دوصال له فرقتونه

نور به تېر شی ددنيا له‌لذتونه

ته چی ماته نصيحت کوې ناصحه

عاشقا ن کله منی نصيحتونه

نه او به په غلبېله کی و دريږی

نه په عشق کی چا ته شی نصيحتونه

---

(۱) بن: سينه می ورژلی.

درست جهان دې لاندې باندې زير زبر کړ
په هرچا تاختونه کړې ورکشې بېلتونه
په دنيا کې مې وصال مينډلې نه دى
ځکه تل له هجره کړم شکايتونه
«قلندر» که آه افسوس کاندى گرم نه دى
بېلتانه و رباندې کړى دى تاختونه

«۸۶»

*۳۰*

*٦٥٧*

څوک چې ستا په مينه کې وساته که پندونه
واړه بې وفاړدى ابا سېندوته پندونه
زړه سې دناداان په لاس کې سات لکه شيښه شو
نه شي څوک ايښوواى وشيشوته پيوندونه
اوښى دبانو په سرچې راشي نه درېږى
نه دى چاپند کړى په گياه سره سيندونه
نه شي څوک ستا تلې سره بخرى په گريوان کې
ومې سوه په آه سره دصبر درمندونه
نه دى چا سوندلې ښا پېرى په دوشالو کې
واخله «قلندره» په سيرا پسې گندو نه

ی

«۸۷»

*۶۲۲*　　　　　　*۱*

کوچنی یار چی(۱)درقیب خبري نغوتې
آخر سرې(۲)بی کړی زما په وینوګوتې
دبهار ګلونه توی شوه په خزان کی
په ارمان بلبلی لاړی شوې والوتې
دا دا وسپنو چنی چیچل آسان دی
له چیچلو ددلبرو دعشق ورتې (۳)
ګدایی دیار دکوی هسی منصب دی
ورته هیڅ دسلیمان پیغمبر ګوتې

---

(۱) بڼ : دل‌آرام چی.

(۲) بڼ : آخر رنګ بی

(۳) اصل : روتی (بڼ).

سرله‌سره‌به پری (۱) ځوان‌شي «قلندره»
که یار درشی خوا په خوا تنهی پرانتي

«۸۸»

*۲* *۶۶۷*

چې دعشق په اور کی وسوځی ابد ځی
د بقا ولو ر ته تل ولم یو لد ځی

په هردم وخپل اشنا وته پرواز کړم
چی می ذکر په‌شپېته رګه سیصد ځی

چی په دارنګه سلوک سره سالك شی
نورهمیش(به)بی پروا له نیك وبد ځی

دا منزل دعقل نه‌دی «قلندره»
په‌دا لا رووایه کوم اهل خرد ځی

---

(۱) نس : سرد سره‌به پري.

*٦٧١*　　　　*٣*

چی دەرسەری(١) خاطر پرگریڤتاردی

اول زلفی، دویم خال، دریم رخسار دی

چی سدام لەعاشقا نوسرەسلە دی

یووصا ل ،دو یم هجران ،دریم انگاردی

چی پیرزویی بی لە سوپە بدونە شی(٢)

اول سوردە، دویم پلار(٣)، دریم سەیاردی

دادری خیزەدیِ رب واخلی لەسینو (٤)

بوگناه، دویم خواری، دریم چی عاردی

پەدادری خیزەدیِ سرگ دهیچانەوی

اول حرق دی، دویم غرق، دریم چی ساردی

---

(١) ب ٢: چی دهرعاشق.

(٢) ب ٢: دبدونەوی.

(٣) ب ٢: اول پلار ،دویم سور .

(٤) ب ٢: دادریِ توکیە سی رب واخلەلە سینو .

داد ري ځيزه د ري سرولره جوړېږي(۱)

شيخ تسبيح، ملا كتاب، هندو زنار دی

چې دا دري صفته شته دی اميدوار يم(۲)

يو رحيم، دويم كريم، دريم غفار دی

نتيجې د عاشقيې خو دا دري دی(۳)

يو ديدن، دويم بوسه، دريم كنار دی

چې پرې غم غلطاوه‌شي هغه دری دی

يو قلم، دويم بياض، دريم اشعار دی

چې سړو پېرو وهر چا ته محبوب شي(۴)

اول دين، دويم دنيا، دريم مدار دی

ډير تلاش ورپسې وكړه «قلندره»(۵)

دين په كار، علم په كار، باطن په كار دی

---

(۱) ب ۲: دا دري ځيزه د ري سړو سره سازيږي.

(۲) ب ۲: چې دا دري صفته دي اميد موشته دی.

(۳) ب ۲: ثمره د عاشقی هم دغه دري دي.

(۴) ب ۲: چې سړی پرې باندي چاو ته محبوب شي.

(۵) ب ۲: ډير كوشش ورپسې وكړه قلندره

*۶۸۲* *۳*

بل پرسرسی ستاد هجرهسی اوردی

چی په سوی سی ځیګر په غم کی تور دی

ما و یل زه به دې له غمه خخه ومرم

لا نصیب سی په دنیا کی باقی نور دی

زه مجنون نه یم نور څه یم روغه خلقه

چی اشنا رانه روان دهند په لور دی

ماچی مخ دغما زولیده په ستر ګو

ځکه بختشو زما تو رګار سی نسکودی

په رموز گی غما زماته نصیحت که

زه پو هېږم دی دخدای دلا ری چوردی

غماز ما وته تل وایی وجارو زه

جارو اته بیحده ساوته پېغور دی

دهجران ناکردی گوره چی یی کاندي

چی مدام په عاشقانو پسی شور دی

ستاله لاسه به یی نوش کم که وی زهر

قلند ر چی په تحقیق د مجنون ورور دی

«قلندر»چی بی وفا نه دی نورخه د ی

چی سیر اور خخه لاړ مخ په لاهوردی

*۶۹۱ *

*٥*

دګلر خوا شنا یی یوهسی اور دی

چی پرېسوی دعاشق دصبر کوردی

په ژړا ژړا سی دواړه لیمه تر شوه

دیار خیال سی پهچشمانوکی انځور دی

ستا د سترګو خمارو خمار دی ترکه

هنګهارچیدرنځورو(۱) کورپه کور دی

د فلک له سهما نیې به څه وایم

چیښانکیېپرتندی باندېنسکور دی

کهدانورعالم پهنورڅه لویی کاندی

ما له فخر ستاد سینی په پیغور دی

لا ایله یی په کوڅهتیر شوی نهوم

سپیغمازناری وهیچیچوردی چوردی

یار له یاره په رضا کله بېلیږی

روغه خلکه لاس سی نه رسیږی زور دی

---

(۱) اصل : هنګهارچې رنځورانو دی .

غمازان به په دنیا کی ښادی نه که
قلندر په رښتیا نو پسی سوور دی

«قلندر» چی په سترا پسی سړ نه شو
خلک سخ یی ترخو بانو پوری تور دی

«۹۲»

*۶*

*۷۰۰*

چی له نازه می په سترگو قدم (۱) کښیږدی
دخیگر په جراحت می مرهم کښیږدی

طبیبانو له ددهر (۲) دلیل نشته
لا یو داغ می هسی (۳) سیخی بیا دوم کښیږدی

چی دخپل حرم آهو په عذر نیسي
خوک به خه قدم داستا په حرم کښیږدی

چی ښکاروشی یو ایلچی په عاشقی کی
دخرد په محلونو وهم کښیږدی (۴)

(۱) اصل: چي له نازه مي قدم په سترگو کښیږدی.
(۲) ښ: دفلک دطبیبانو
(۳) اصل: لا یو داغ هسی (ښ)
(۴) اصل: دحرم په محلتونه ورهم کښیږدی

بر همن غوندی سردار (١) دطا يفی شی
چی له شوقه سر په پښو د صنم کښېږدی

چی را پاخی شور اوشر دجدا يي
ژر په سرباندی سرپوښ جهنم کښېږدی

په ما بی له ياره زهر هلا هل شی
که سی څوک به خوله جام ونه دجم کښېږدی

ای سېرا که ته يی څه خو کړی سلا تېينگه
«قلندر» به شورو شر په قلم کښېږدی

«٩٣»

*٧٠٨*

*٧*
دوه چشمان د استاز ما په زړه کی داغ دی
له دی داغه گل او کان می بی فراغ دی

په ژړا ژړا می دوه سترگی ناسور دی
غمازان د غمازی چست په سراغ دی

بل يوغم را باندی نشته په دنيا کی
بی دیار له برند و سترگو چی کلاغ دی

(١) بښ : سرور

مجنون څه وڅې يې نوم په جهان خور شو

عاشقان کل په داشاني بدماغ دی

سر چې کښيږدی وقرآن ته قرار ی که

خلاص به نه شې دوه چشمان دیار چراغ دی

سره چشمان دې یاره هرزمان په باغ کی

دجهان دمهرو یا نو دا فراغ دی

چې په وصف دمیرا شوم په ژړا کې

مهرویان په خندا لاړه خوش دماغ دی

«قلندر» به یې صفت کوم تر کومه

ډېر غموزه یې وزړه ته په سراغ دی

«۹۴»

*۸*

*۷۱۶*

چې نظر زما مدام پر تا صنم دی

ځکه اوښې تو یومه گریوان نم دی

زه به تل په لار کې ناست په انتظار یم

یار مدام بې غمه ناست خو ښ وخرم دی

هغه خاوری به رانجه کړم زه دسترګو
چی آشناوربانده‌ی ایښی خپل قدم دی

سر چی غوڅ کړی دقلم هاله تازه شی
خوار عاشق خو سرپریکړی ستاقلم دی

اوس یی زړه زما سوری د غم په سیخ کړ
پیدا کړی خدای په‌اصل کی ظالم دی

چی له سهمه یی جواب ته لاجواب یم
نن زما دیار هرګوره ډیر حشم دی

چی له سخه یی شغلی دآفتاب خیژی
دا زما دلبر څرګنده په عالم دی

دزخمی «قلندر» حال واخله میرا (هه)
چی دیدن یی ستاد خوږ زړګی مرهم دی

«۹۵»

*۷۲۴* *۹*

ته چی په لاس کی کښلی ایاغ لری
داخسته زړه (می) ځکه په‌داغ لری

طوطیان شړی ته دباغ له گلو

باغ دسرو گلو په لاس دزاغ لري

دا پتنگان هم په تا پو هیږی

چې سپین رخسارد ی لکه چراغ لری

بل به څوك نه وی په درست جهان کی

لکه چې ته بی دا رنگ دماغ لري

عاشق ته سیزي څپل په آتش کی

وایه نو ر څرنگه کښلی فراغ لری

تا په خپل غم دی گلستان کړی

د «قلندر» زړه هم په شان دباغ لری (۱)

---

(۱) داغزله د ملانبا یسته خان په خطی جونگ کې دلنډ بحر په کالب کی دامې راغلی ده :

| | |
|---|---|
| چی په لا س ایا غ لری | خسته دل په دا غ لری |
| طو طیان وباسی له باغه | باغ هم درست د زاغ لر ي |
| پتنگان هم و ر پریوځی | چی سپین مخ چراغ لر ی |
| عاشق اچوی وا ور ته | بیـاعجـب فراغ لـر ي |
| بله نشته په جها ن کی | لکه تـه د مـاغ ا ر ي |

په خپل غم دي گلستا ن که

د «قلندر» ز ړه با غ لري

*۷۳۰*　　　　*۱۰*

ماویل زن دې د هجران پیالې رانوش کړی

گل خواري دې د عاشقو فراموش کړې

فلک گورد چې دوران په عکس کاندی

چې یې ته په خوی خصلت لکه سروش کړدې

لکه زه چې دې په عشق کې په اور سوځم

بل به کوم زما په شان حلقه به گوش کړی

ساچې گوټ د زهر ووکيء په وصلت کې

کشکې ته د وصل میراته رانوش کړې

زه به آب حیات ور کړم د لبا نو

که خرقه راپسی ته واخلې په دوش کړی

«قلندر» چې ویل کاندی له هجرا ئه

سیراراشه خوخبرې که ته گوش کړې

*۱۱*

*۷۳۶*

په گوښه دسترگو ولی نظر نه کړي

ولی ورځ دغم په خوا رو (۱) اختر نه کړي

مخ دي پټ کړ (۲) په حجاب کی ځکه شپه شوه

شپه د هجر په ما ولی سحر نه کړي

چې پرې خلاص شم (۳) دغمونو له بارانه

بد رولی له سحابه بدرنه کړی

آسمانونه حذر که زما له آهه

ته زما له آهه ولی حذر نه کړي

خارو خس دي په قدم کی سره زر کیږی (۴)

ولی خاورې سی بدلی په زرنه کړي

---

(۱) بښ : په خوا د اختر

(۲) بښ . مخ دی و نغښت

(۳) بښ: پرې خلاصیږم.

(۴) بښ : خاوری خس دي په قدم سره زر کیږی.

ځو ښېږي مې شوې د غم په اوښو ډوبې

ته له دې ګردابه ولې خطر نه کړې

چې جهان دې په ما خوار باندې سقر که

معلومېږي ملاحظه د سقر نه کړې (۱)

ستا د شونډو له فراقه مې زړه تریخ دی

د قلندر په خوله میراته شکر نه کړې (۲)

«۹۸»

*۱۲* *۷۴۴*

داپه څه کړې ګفتګو را سره نه کړې

له ما کومه ګناه شوې ده په څه کړې

چې مې نه کښېنې د سترګو په کښتي کې

خان به ډوب زما داوښو په اویه کړې (۳)

---

(۱) دا بیت دښایسته خان له جونګ نه نقل شو

(۲) بش : ای میرا دقلندر په خوله کې ولې شکر نه کړې.

(۳) بش : په اوبو کړې

زه خوستا په‌قصابی باندی پوهیږم

چی آخربه لاس زما په‌وینو سره کړي(۱)

زه خوستا په‌سنګدلی باندی پوهیږم (۲)

دملک کانی به‌زما په‌سر وانه کړي

دبادام په‌دود می‌زړه سوری سوری شو(۳)

چی را پورته په غمزو(۴)سترګي بانه کړي

څوک می نشته چی‌ګریوان کړم ورته خیري

خدای دي‌وینی هغه‌چاري‌چی‌یی‌ته کړي(۵)

«قلندر» که‌چیرته ومری ستا زه غمه (۶)

جنازی لره یی‌رایشه که ښه کړي

(۱)دابیت دښا بسته خان له‌جونګ نه نقل‌شو .

(۲) بن : چی‌رقیب درسره سل شه‌زه‌پوهیږم .

(۳) ښ : شه

(۴) اصل . غمزه .

(۵) اصل : څو ک می نشته چی ځیګر ورته پاره کړ م

رب یی وینی هغه‌چاري چی یی‌ته کړي

(۶) بن : اي‌میرا قلندر ومرستاله غمه .

«۹۹»

*۷۵۱* *۱۳*

ستا چشمانو هسې سحر په ما کړی
چې جلب بې داختيار لهمانه وړی

ماخود يزې ناري وکړي نپوهيږم
غبرله نازه راته نه که ، که خوب وړي

وهرلورته چې بازدره سې پسې ځمه
چې پهغاره مې دتور وزلفو يړی

چې مدام بې اوبوم دزړه لهنمه
پهسينه مې زرغون ستا دمينې زړی

دسيرا صاحب دمينې په سوجو کې
«قلندر» دمينه په سنځ کې نيزه وړی

«۱۰۰»

*۷۵۶* *۱۳*

بې له سخه ديار هرچې هويدا شې
دصلوة حقيقې بطلان پيدا شې



۱۹۹

چې يوه ذره 'ه حكمه يې عدول كه
پرهغه دخذلا ن حكم ر و ا شي (١)
ته له خپله ځانه ووځه وعرفان ته
د عار فوله عرفانه (٢) مشغولا شي
٣ كه ته ځان جهان ديارپه نامه وركړې
نور هاله به‌حقيقي محبوبه‌ستاشي
كه په كاردې وي دوه كو نه‌ته يې پرېږده
ياراغيار چې يې‌نوم‌يادپه دادنياشي(٣)
كه‌دياروسخ ته گورې هرځه پرېږ دې
كه‌باوردې هم په دادنيا فنا شي (٤)
داصورت‌باندې روښان‌شي«قلندره»
كه‌په‌ژبه‌دې‌تل ذ كردمولاشي(٥)

---

(١) نس : په هغه هم دحرلا فرسان رواشي.

(٢) ا صل : عرفانو (نس ).

(٣) نس : هم يې يار هم يې اغيار هغه همداشي .(نس)

(٤) دا بيت دسلا بنايسته خان له جونگ نه نقل شو

(٥) نس : درست‌صورت‌به‌دې رڼاشي«قلندره»
كه‌دوام‌دې‌په‌ويل‌دلا الله‌شي

*۷٦۳*　　　　*۱۵*

رایشه خوشبو یه چی دماغ سی معطر شی

سخ دې راښکاره کړه چی جداله سا خطر شی

سترگی دې چراغ کړې زه غریب د ې پری پتنگ کړم

وینی سی دزړه دې چی له سترگوسی گذر شی

چیری به رخصت ستاد جواب را شی په بیرته

خلاص به عندلیب له دی ظلمته په خبر شی

خال دی شین در یاب کړ زه دې ډوب کړمه دلبره

خکه مهرویان ستا په صفت کی دربه در شی

خنگه به خلاصیږم ستاله جو ره د چشمانو

زړه می دی په ویره ستاله لوری می حذر شی

سر می درقربان شه «قلندر» دې قلندر کړم

سخ دې سپین سبا دی تور کاکل تر شام بتر شی

## ۱۰۲»

*۱۰٦*　　*۷٦۹*

مشکلات به دجهان واړه آسان شی
که هندی می بیاداخل په خراسان شی

ستاپه غم کی یاره هسی پریشان یم
چی می څوک حال ته وګوری پریشان شی

بی یوسفه په کارنه دی په اور بشه
که هر ښهر ورته مصر یا کنعان شی

رسیده آهو می راولی ښتنه
چی می هندزړه په ښکوآبادان شی

خدای په عدرپه چاد اچا ري ومه کړه
ستا په غم کی چی په ماپه هر زمان شی

اي میرا څو یی له حاله خبر اخلي
ترهغه به «قلندر» په ګورستا ن شی

*٧٧٥*　«١٠٣»　*١٧*

که هرخو یی سرتبه په صفت لوی شی
خو آخر به لکه گل په زمکه توی شی
سرخرویی به یی منظوره شی هر چا ته
که په اوبو یې دخپل (سخ) شست وشوی شی
عاقبت به تر سطلبه پوری و رشی
که په یار پسی مدام په تگ وپوی شی
همیشه به دې مسکن دروسر جان وي
که باریك په ریاضت کی لکه سوی شی
دلجو یی به دې تمام وگړي و که
که ته هم ددلجو یی په جست وجوی شي
نل به خلاص اوسی دنفس له فن فریبه
که له خلقو کناره په یوه سوی شی
که حصار ترخان چار پېر کړي «قلندره»
عاقبت به داجل په چوگان کوی شی

*٧٨٢*　«١٠٤»　*٨١*

دا تور خطراغی په مخ دناز پرور کی
که ساښام په بیرته راغی په سحر کي

ترکلاهه یی ختای تورکاکل دی
که یی تورې توري ایښی دی په سر کې
توری زلفی دې پرتی دي پرمخ باندې
که پراته (دی) طلسمات په سیم وزر کې
دادوی سترگی دی په سرزما دسرۍ
که چا ایښی دي دیوی په صنوبر کې
تردندانو دی دژبی سرخی خیژی
که دلعلو خزانه ده په گوهر کې
زنخدان یی دی دشونډو په سرگوره
که نبات راغله په غولی د شکر کې
وایه سرې گوتی لیدی شی له استونو
که کالی دی دا نار دښاخ په سر کې
دالو خړی ستا د زړه دی (قلندره)
که اگر سوځی سیراته په مجمر کې
«۱۰۵»
*۱۹* *۷۹*
داگیسودي تور پراته دیار په بر کې (۱)
که راغلی ده اوریځ په مخ دنمر کې

(۱) بن: دي سیه زلفی پرتی دیار په بر کې.

دسکندر په آئینه کی لیده نه شی

دا چی و ینم زه په مخ دخپل دلبر کی

اور یده د جنت کله دا خوښی شی

لکه ولیده مانن دیار په درکی (۱)

ووسعراج دمحمد پرآسما نو نه (۲)

او سعراج دی دعا شق (۳) ددار په سر کی

داپه عشق کی لیونتوب (۴) کمال هنر دی

نشته دارنگه کمال په بل هنر کی

لکه خوند دیار په لبو کی مونده شی

دالذت کله مونده شی په کوثر کی (۵)

دا بلبل جلاله گله دی فریاد کړی (۶)

که خسته «قلندر» ژا ړی په سحر کی

---

(۱) بن: د جنت هومره خوښی او ریدی نه شی
چی ما لیدلی ده د خپل یار په در کی

(۲) بن : دی معراج د پیغمبر پر آسمانونو.

(۳) بن : منصور.

(۴) بن : خواری ده.

(۵) بن : کله شی موند همسی آب په حوض کوثر کی.

(۶) اصل : دا بلبل ژړا ندله گله دی ژړا که ( بن )

*۲۰*

*۷۹۷*

تاچې وعده کړې په کتب دمقدم کې
خوك به يې رسوا که مشهورشي په عالم کې

دواړه کونه نه ووستاملال کاته ها له ( وو )
دا يقين مي خاص دي چې عيب نشته په صنم کې

تاچې دجمال په نظرو کاته ويار ته
يار دي شايسته دي چې محبوبي په عالم کې

نه دي چاليدلي صبح وشام په يوه ځاى کې
ماته لمر ښکاره شو ستا د زلفو په تور تم کې

ستاد باغ ګلو نه عاشقان يي بويونه
دا رنګ ښه ګلو نه نه خپريږي ستا په چم کې

تاچې دجمال زلفې خپرې دخيال پر مخ کړې
سخ دعاشقانوچې بې نيسي په هردم کې

غوخ دي«قلندر» کړ دوصال مرهم پرې کښيږده
ډيره آساني شي در نځوروپه مرهم کې

*۸۰۴*

*۲۱*

خوبش یم په دا حال چې مې دلبر په دل وجان کې

گوره وقلم ته چې یې ځای په قلم دان کې

زه ارم په زړه بانډی بل حرف ستا بې قامته

پرې شووسې استاد په دا سبق دالف خوان کې

ته چې په شا یست له نمرسپوږمیه هم بهتر یې

دوی تر تاخجل شوه ځای یې ونیو په آسمان کې

ډیر چې ترحم ته پر عاشق خپل باندې و کې

وینم تل زه رحم چې اور بړې په باران کې

نشته دی بل یوچې به مثال له تا سره که

وینم برابر غشی ته ولی په کمان کې

لعل (و) جوا هر به جوهري په سنگ میده که

آب ددوار و ستر گو چې ستاوینې په چشمان کې

ستا ثنا به وایم په خورنګه په خوشانه

ته سې نه پوښتې چې حال دې څه دی په هجران کې

زلفې دې چې دمخ وته کړې وینم دلداره
دادې درته وایم «قلندر» شو په زندان کې

«۱۰۸»

*۲۲*
*۸۱۲*

زه ګیاه یم ته سی نم یې په هرشان کې
یاسی ته یې وینه زه ماغزه په استخوان کې
نه دی پیدا شوی نه به پس له دې پیدا شي
ستا شانې دلبره چې مشهوریې په جهان کې
سرو ې سر که پورته ستا کتوله، له دیواله
ستر کو ته دې دی نرګس کتونې په بوستان کې
وا روه ته دلبره آوا زو نه یې غو ږ باسه
ګو ره ستا صفت که بلبلان په خپل زبان کې
را یشه خیرات دسپینې خولې وربانده یو که
نه دی «قلندر» ته پاته زور په هیڅ ار کان کې

«۱۰۹»

*۲۳*
*۸۱۷*

زه په داسې و هم له غمه کو کې
چې یې غوځې کړې اوږدې د زلفو ځو کې

ستاغمو نو سی پنجی په زړه کړی خښی
لکه خښی که بو را په گلو نو کـــی
خدای مـی مرلره د عشق په گفتکوی کی
بی له عشقه دی عبث خبری پو کی
شپه وروځ مـی‌زیست روزگار په تنا ره شو
هـی خما خسته خاطره چـــی په دو کـی
که عاشق یی ننگ ونام له زړه کړه لیری
که په قطع افلاطون یی که ملو کی
لـــه رقیب سره په مـــهر په خـند ا یی
له عـــاشق سره مدا م پـه قهر د و کـــی
له هر چـــا سره کوی هزار سلـو کـه
قلندر ســـره نو ولـــی بی سلـــو کـــی
«۱۱۰»
*۸۲م*
*م۲*
سر دی د زلفینو دی په بیرته جا را یستلی
عین لکه تـــور مار دی‌وگوزارته ســـرنیوا ـــی

دا دی شینکی خال دی د زنخ په چاه کی ډوب شو

یا که دا بوراشی لید په گل ننو تلی (۱)

د ادبور الوکی چی ایستلی شی له کله

یا که داویښتودې دی له زنی سر وهلی (۲)

داشونډه ی ذاتی ستاسری که سر ې دی کړی په پانو

یا دې دي دا و ینی د گا یلو په ز بیښلی (۳)

یاد ادجنت دگـلو بوی پـه جهان خورشـو

یا دی دا سور باد ستاد زلـفو الوتــلی(۴)

ستـاد زلفودحلـقو هـومـــره ځنځیر دی

یا یوسف د ی چـی پـه دلو کی را ختلی

(۱)بن: دایی خال دزنخدان په چاه کی ډوب شه

که په گل بـاندی بـورانو تـلی

(۲)بن: دابورانو کی ایستلی دی گله له که ویښته دې سرله زنی دی ایستلی

(۳) بن : دادپا ن په مصا لح دې شونډی سری دی

یادې و ینود کایلو پری زبیښلی

(۴)بن :

دبهشت دگلو بوی په جهان خو رشه

یا سوار با د دې دزلفینوالوتلی



۲۰۷

ستاد زلفو(۱) صفت ووا یـه چی څو کړم
ته یې ښه دلبرچی«قلندر» میرا پسندلی(۲)

«۱۱۱»

*۸۳۱* *۲۵*

نوم د وصل سی په غوږ دی او ر یدلی
نور قسم دی که ما هیچیری لید لی(۳)
سا هاله له ژونده نه دی لاس اخیستی
چی سی ستاد زلفو تار په لاس نیولی (۴)
بیهو ده په آ هو چشمو پسی مه ځه
آهو کله چا په د و سره نیو لی (۵)

---

(۱) اصل: ستاددوارو (ښ)
(۲) ښ دادلبردی «قلندر» میرا پسندلی
(۳) الف: ماچیرته دی
(۴) الف: ما هاله له ژوندانه دی لاس اخیستی
چی سی لاس دی ستا په زلفو لګو لی
(۵) الف: زړه! آ هو کله په د ودی چا نیولی



۲۰۸

دديدن خير را واچوه دلبر ه

ما کچکول د بې ننګۍ د ر ته نيـو لی

پس له مرګه ما څوک مه ژاړیء عالمه

ما پخپله په ژوند ونی ځان ژړلی(۱)

«۱۱۲»

*۲۶*

*۸۳۶*

يومی تيرې د هجران په سرورې شوې

بل سينی د ر قيبا نو ر ا سړی شو ې

ترليمه سی د ځيګر قطره پر يوځی

حوا له سی پر زړګی د غم چړی شو ې

لا يی تيز که عر ا قی زما دقتل

خر خښی د مهر و يا نو کر و ړ ی شو ې

له د هشته چی سی نوم اخيستی نه شو

او س هغه ګو لی په خوله راو خوړی شوې

چی پراور م مخالف نصيحتو نه

له غير ته سی د غو ږو کمترې شو ې

---

(۱)الف: په خپله په ژوندون دی ځان ژړلی.

„قلندر» د گور زندان لره روان دی
چې په پښویی ستا دمینې پایکړې شوې

«۱۳»

*۸۳۲* *۲۷*

چې ویارته مې د هجر احوال ووې
په جواب یې راته صبر فی الحال ووې
هېڅ طاقت مې د گړی دساعت نشته
د وصال راته په ماه وبه سال ووې
که په دا اشنا مینده شي خوارزان دی
په سودا چې یې د سراو دمال ووې
ماوې زړونه دې په مخ کې دې صید کړي
په خندا یې ژر په خط وپه خال ووې
وا به نه ورم د ناصح په هسې وعظ
که و مینې ته یې کارد و بال ووې
که ونو روو ته سهل څرگندیږي
ما و هجر ته کل جنگ و جدال ووې
چې غم و نو د میرا سو ری سو ری کـړم
„قلندر» څکه خپل زړه ته غربال ووې

*۲۸*

*۹۳۸*

ما دیار په درکی سرګ ته ژوندون ووې
دا می کله له قانونه بیرون ووې

چی اثر کاندې پر زړونو د خوبانو
ما د عشق و هر کلام ته افسون ووې

چی ژړالری په وصل کی له هجره
دانا یانو و وصال ته بیلتون ووې

لوی منصب دعا شتانو ددارسر دی
د افی الحال و ماته قیس مجنون ووې

څه به مهر وفا غواړی له فلکه
د ارباب راته دز یر په مضمون ووې

بل طبیب «دقاند» رپه رنځ نادان دی
ده دعشق ورنځ ته حکه طاعون ووې

*١*

*٥٥٨*

*١*

زه دې د وصل په طمع گرځم
هجران دی وسوم له غمه پرځم
که سی وصال وی له (خپل) مینه (١)
قلندر که له په بل لوری گرځم

*٢*

زه (دی) له هجره امان تل غواړم
بی تا زه سهر د بل نه غواړم
که دې نظر وی میراو ماته (٢)
زه «قلندر» دې په درکی ژاړم

*٣*

زه په هجران کی دې مبتلا کړم
غریب همیش دې په واویلا کړم (٣)
درب د پاره جفانو ر پر یږده
زه «قلندر» دې میرا جلیا کړم (٤)

---

(١) بن: که سی وصال وی له تا میرا هه
(٢) ش: وصال (٣) ش: میرا هه خانه.
(٤) اصل: درب د پاره جفانور پریږده — زه قلندر دې په درکی ژاړم

*۴*

په دوه‌چشما نودې زه په‌دار کړم

چې په جهان دې له‌خاورو(۱) خوار کړم

سېرا داگوره «قلندر» ژاړي(۲) په‌بد هجران دې زه گرفتار کړم

*۵*

څو يې له‌غمه په صحرا سرنه‌شم په آهو چشمو پسې بورنه‌شم

څو دې له‌غمه خوار قلندر نه شم سېراد تا به هوسره په‌برنه‌شم (۳)

*٦*

که دې په‌وصل ياره‌خوشحال وم څکه هجران ته داستا زه‌ړال وم

زه «قلندر» دې له‌خوارۍ دروسم په‌زاردې‌نه‌وم چې دې په‌حال وم(۴)

---

(۱) نس. تر خاورو.

(۲) بلی: سېرا هه گوره‌قلندر ژاړم

(۳) نس: څو يې له غمه خوار قلند رنه‌شم

د سېر ا يا ر به هـو سـره په بر نـه شم

*۷*

ته سی پتنګئ یی زه دې څراغ یم    زه دې له وصله په زړه کی داغ یم

که دې یاد یـږم سیـرا صاحبه    «قلندر» تاته په زړه فراغ یم (۵)

*۸*

وفـا دې څه ده جفا دې سوی یم    زه سمندر یم هجران دللیم غم

زه «قلندر» د ې په هجران وسوم    بی رحمی سه کړه درله راغلی یم

(۴) دا څـلوریزه د څا یسته خان په جونګ کی داسی راغلی ده:

که دی په وصل سره خوشحال یم

څکه سیرا دهجر ته دې نال یم

زه «قلندر» دی له خوارې . . .

په زار دی نه یم چی دې په حال یم

(۵) څ س : که دې یا د یږی شاه قلندر

میرا په زړه کی درته فراغ یم

*۹*

*۸۷۱*

*۱*

زه نه پوهیږم چی یم په خوب کی — که می میرادی چی هم کنارشو

نن د بلبلو په گـل چغا رشو — چی په فریاد یی سورگل بیدا رشو

*۱۰*

زه لـه هیواده (۱) راغلم یارانو — میر اسی ولید په دوه چشمانـو

میرا سی پیر دی زه یی مرید یم — هجره لاس واخله لـه غریبانـو

*۱۱*

قیامت قـایم شو پر عاشقانو (۲) — څــکه حساب شوم له غریبانو

که وصال نه وی هجران دی بس دی — قلندر بیل شو له ار واحانـو

---

(۱) بن: زه یم له سفره

(۲) بن: شه په عاشقا نو

*۱۲*

*۸۷۷* *۳*

چــی و یــل کرمه لــه کنا یته — خوشرنگ ســیرادی بی نهایته

«قلندر» حکه له هــجره ژ ارم — چی شوم سترو ک زه له جماعته (*)

*۱۳*

زه چی سین شــوم له امارتــه — سیرا امان کــړې تــه سلامته

زه «قلندر» دي پهدرکی پروت یم — طمع کــو م زه له اجــازتــه

*۱۴*

عاشقان تل دی لــه ملامته — خدا یه دلبر کــړی له سلامته

---

(*) دا رباعی دنبایسته خان پهچونگ کی داسی راغلی ده:

زه تول و یل کرم له کنایته

سیراسی یاردی بی جراحته

«قلندر» حکه له هجره ژارې

چی شوم تار کــه له جماعته

*۱۵*

را بره مه(۱) شی دغم صبا حه یار دي جدا کړ زما له ارواحه(۲)
قلندر دوب شو دغم په اوبو(۳) لاس و ر له ور کړه مېرا ملا حه

*۱٦*

سینه می سوې د عشق په اورده
را باندې تنګه د نیا ترګور ده
اشنا می زلفی په مخ خوری کړی
که مکه پټه په اتلس تور ده(۴)

*۱۷*

را شکا ره مه شه بی وفا یا ره
په زړه دې زخمی کړم سینه افګاره

---

(۱) بښ: د بره(۲) بښ: زما له را حه(۳) بښ: د غم په سینه کی.
(۴) دا څلور یزه د شایسته خا ن له قلمي جو نګ نه نقل شو ه،

په صورت سهين يې په زړه سنګين يې

څه خو انصاف کړه د خدای د پاره (۱)

*۱۸*

سيرا صاحبه (۲) رب دې زنده لره

ستا پر ثنا مې (۳) تل ګو ينده لره

چه «قلندر ی د» مجنون په وصل کړ

سيرا ځښتن دې تل پا ينده لره (۴)

*۱۹*

سلا م سلا م دې ای نا ز پر و ره

سلام مې وا خله خپله (۵) د لبره

---

(۱) د ا څلو ر يز ه د سلا ښا يسته خا ن له قلمي جو ن‌ګ

نه نقل شو ه.

(۲) ښ‌ن : زما صاحبه ، (۳) پرثنا مستا سی

(۴) ښ‌ن : چې قلندر دی زنده په وصل کړ

سيرا صاحبه رب دی زنده لره

(۵) ښ‌ن: زما.

وروستی دیدن دی بیا بەارمان کړی

میراغم دور کړه له «قلنډ ره»(۱)

*۲۰*

نن په ګلو دبـلـبـل چـغـار شه

په ډیر فر یادیی بلبل بیدار شه

زه نه پوهیږم چی یم په خواب کی

میرا دی وینم چی همکنار شه

*۲۱*

درب د پاره کاغذه ورشه

هغه آشنا ته په لار و سر شه

---

(۱) نس : میراهه واورەواخله غم لەقلندره

چې تا و یشتلی «قلندر» پروت دی

په خندکدن کی تلقین له و رشه

*۲۲*

حجاب می یوسی په خره سی سور که

درسته دنیا (چې) په ماسو راور که

زه د میرا یم میرا زما دی

د رقیبانو مخ به ورتو رکه(۱)

*۱* *۲۳* *۸۹۷*

که له ما لیری په بل هیواد دی

په هرساعت کی زما په یاد دی

آرام می ورك شو بی تا صاحبه

باعث دغم می په ازد یاد دی

---

(۱) دا څلور یزه دملانبایسته خان له جونگ نه نقل شوه.

*۲۴*

نن مې په زړه کې هوس د يار دی

چې را نه تللی مېرا شهسوار دی

اوس قلندر شوی ته «قلندره»

زما م دعشق دی همېش مهار دی

*۲۵*

همېش په هجر مې د زړه گداز دی (۱)

چې را نه تللی مېر اشهباز دی

دا خدای دې وران که ای کوروکلیه (۲)

له «قلندره» مېرا نا ساز دی

*۲۶*

نن داجل دسپرو (۳) غوږدی

غوږ دمرگي مې د يار ترغوږ دی (۴)

---

(۱) نس: دتن گداز.

(۲) نس: که خدای دې وران که کليه کوره

(۳) نس: سورو (۴) نس: چې مېر اتير شه څه پلمو غوږ دی.

زه «قلندر» یی له هجره و سرم

چی سیرالاړ شو داغبړ په زوړد ی (۱)

*۲۷*

ما او ریدلی د سیرا غګ دی

پراوی سفرچی لاړشو په تګ دی (۲)

سیرادا واړه درته زاری کړم (۳)

چی «قلندر» دی په درګی سګ دی

*۲۸*

چاچی جاسونه د سینی چښی دی

ننګ وناموس (۴) یی دواړه پرایښی دی

---

(۱) : نس زه قلندردی په طمع سرشوم — د سیرا باری دا غبړ وزوړدی

(۲) نس: زن می اور یدلی دسیرا غبړدی — دزړه هوش سی پسی په زوړ دی

(۳) نس: سیرا هه واوره دامی زاری ده

(۴) : ننګه ونام (نس) ·

که هندله تللی اشناسی راشی (۱)

څو صدقی (۲) سی په زړه کی ایښی دی

*۲۹*

چی هغه ښکلی له ما بیل شوی دی

تمام صورت سی په اور اوی دی

داتور عاصی دی په دوزخو نو کی

که «قلندر» دی غمونو سوی دی

*۳۰*

برایی شپه سی یوخوب لیدلی دی

کانی دغم سی په کور ابو یدلی دی (۳)

دواړه چشمان یی راته پېغور که

چی راښکاره شی زړه سی نتلی دی

(۱) نسخه: سیرامی.

(۲) نسخه: څو نذرونه.

(۳) اصل: دغم کانی سی په خونه پریوتلی دی

* دا څلور یزه دښایسته خان له جونګ نه نقل شوه

*۳۱*

د اسرې لمبې مې په تندې بلې دی تندی سی موځی کولمی می جلې دی
خوشحال لی نشته د عاشقانو د هجر هسې ناتاري چلې دی (۱)

*۳۲*

براېي شپه مې يو خوب ليدلې دی
که رب ويښوا د ده سی ښاغلی دی
وايم عيسی دی راته خبري که
(که) «شاه قلندره» سيراغلی دی (۲)

*۳۳*

هجرانه تاچي زنگونو هلی دی
مست دي په خونه زما ليولی دی
نور څوک هم شته دې په دې و يجاړه کی
که «قلندر» دي تنها موندلی دی (۳)

---

(۱) نس: خوشحالی نشته شاه قلندر ـ د هجران هسې ناتاري چلې دی
(۲)، (۳) داد وې څلور يزې د ملا ښايسته خان له جونګه نه
نقل شوی .

*۳۴*

تر زنې تېرې دزلفو څوکې دي
تر گل ختلې دبورا نوکې دي
دا «قلندر» دې ، سېـراصفت کـه
که پــه چمن کې دبوراکوکې دي

*۳۵*

گــل دگلا بو غبار پرې بانـدې
که خط پر مخ دې د صنم بانندې
حسن کــما ل دی زوال به مومــی
دغم غبارسی خاطر کېء (۱)لاندې

*۳۶*

نصیب راوکړې چا رې نــا پسندې
د سپند په غا ړه سر شو م لـد تند ی
که سېرا را شی د هند له لورې (۲)
هـا لـه به وا يـم نـصیبه رنـدی

---

(۱) بش : که ٬ (۲) بش : دهندله زیه

*۳۷*

د عاشقانو برخې (۱) دي خوارې

چې بې قرارد روسی (۲) همیش په لارې

که دې د اوصل چېر ته روزی شــو

هاله به وایم چې د «قلندر» یارې (۳)

*۳۸*

ســحر ســبا شــو پټېږی ســتوری

خبر را نغی د یــا رد اـــو ری

---

(۱) اصل: برخې (بن).

(۲) بن: چې بې قراردی.

(۳) بن: که دې داو صال روزی شه

هاله به وایم «قلندر» دېرا یارې

قاصده ورشه خبر یی راوړه
پسې مې سپین شوه د سترګو تورې

*۳۹*

اخونده ته چې هسې جفا کړې
تقدیر د خدای به بدل په دا کړې
که ژوندی یمه ښادې مې نشته
مجنون په کومه لیلی شیدا کړې

*۴۰*

بېلتونه (۱) ته چې دارنګ تاختونه کړې
اشنا به لېرې په هېوادونه کړې
سیرادې هلته په هندبرات کیږ (۲)
او «قلندر» ته (۳) ولې عذرونه کړې

---

(۱) نور: هجرانه، (۲)، نښ: که (۳) نښ: اوس قلندره.

*۴۱*

د غم آسمان مې په سر نړيږی
بیا مې په سر کې ما غزه اېښیږي
قیامت قایم شه په دا ساعت کې
شاه قلندر نه، سیرا بېلېږي (*)

*۴۲*

پاس په تندی مې آسمان نړیږي
له تا وه جو شه ما غزه مې لوېږي
که ته را دروسې تلوار راوکړه
په تش کاته دي رنځور ښه کېږي

*۴۳*

دیار مخ دی له حجابه را نمائېږي
که آفتاب دی په اوریځ کی راښکاریږي

*دا غلو ریزه د ملا شایسته خان له جو نګ نه نقل شوه .

دزلفینو تر حلقو یی مخ ښکاریږي

که په توره شپه کی شمع ده ځلیږي

*۴۴*

خوشحالی مه کړه غم به دې زیات شی

څوک چی چو کی که کور یی میرات شی

میرا صاحبه خبر یی وا خله

«قلندر» دروه‌ی نیت یی دسوات شی(۱)

*۴۵*

چی دې هجران دی را باندې ایښی

رقیب دې یاره له ما نه ګوښی

---

(۱) دا ځلور یزه دښایسته خان په جونګ کی دامی راغلی ده.
خوشحالی مه کړه غم دې زیات شه - چی څوک یی کاندی کور یی میرات شه
خبر دې وا خله میرا هه یاره - قلندر د رو می نتی د سوات شه

د يدن د مخ دي را ته ښکاره کړه

زه «قلندر» دي په در پرې ایښی (۱)

*۴٦*

زما د لبره د خدا ورو خښت شوې

په تو را حد کی را خښخه پښ شوې

دا (تا) چې مخ کړ و تور لحد ته

له« قلند ره » گو یا په خښت شو ې

*۴۷*

که رانه(۲)لیرې په بل هیوادیې

په هر ساعت کې زما په یاد یې

آرام می ورکشه بې تا میر اهه

که زه ستا هیریم زمانه یادیې(۳)

---

(۱) ښ: زه قلندر دي میرا پرې ایښی.

(۲)اصل نه.

(۳)دا څلوریزه د ملا بها یسته خان له جونگ نه نقل شوه .

*۴۸*

زما دلبره په شان د گل یې

زړه سی بوستان دی ته سی بلبل یې

سیراروان شه «قلندر» ژاړی

ربه په ژړا (یی) ستر گی گل گل دی (۱)

---

(۱) د ا غلو ریزه د ملا شا پسته خان له خطی جونگ نه نقل شوه.



«۱»

*۹۴۹*

*۱*

مخ دې څراغ دی ظلمت دې هجر

عاشق پر سپاندی(۱) جلیا یی ځیگر

څنگه به خلاص شی هجران دې اور دی

مدام پر سوځی عاشق په فکر (۲)

«قلندر» سر شو په دېر افسوس کی

درتلای خونه شی وریت یی صدر (۳)

«۲»

*۹۵۳*

*۱*

اشنا که هر څو له ستر گود و زارم

مدام دایم یی په زړه حضور لرم

---

(۱)اصل : عاشق پری سواندی (ښ)

(۲)ښ : څرنگه به خلاص شی هجران او ر دی

مدام پری سوزی مهجور دې په د ر

(۳)ښ: قلندر سرشه په دېر ارمان کی ــ مدت یی تېر شه و ریت شه صدر

بې له دیدنه یې کې ور تېروم

بې تا دلبره وطن تنور لرم

سترګې مې دواړه په ژړا سرې کړې

لیمه زه دواړه په مخ ناسور لرم (۱)

سحر ژړا یې (۲) په زړه ښه لګې

«قلندر» ځکه په زړه رنځور لرم

*۳*   «۳»   *۹۵۵*

زه په حجاب کې مدام په دوک یم

عالم حجاب دی زه بدسلوک یم (۳)

که حجاب ور کړ شي عالم په راشي

زه تل سمکن یم پسې په کوک یم (۴)

---

(۱) نس: دواړه لیمه مې په ژړا ویاسته ـ چشماني دواړه په مخ ناسور لرم

(۲) نس: د سحر ژړا .

(۳) نس: زه ځکه په داسلوک یم

(۴) نس: سمکن همېش پسې په دوک یم.

که میر امیر وی هاله به راشی

زه «قلند ر» یی مدام مملوک یم (۱)

«۴»

*۹۵۹* *۱*

ر به هجران کړم زه بی طاقته

چې یې بېزار کړم زه له قوته

د میرا سینه دغم دانه شوه

آدم یې کوز کړم زه له جنته

«قلند ر» څکه په ورځ و رځ زاړی

چې یې مهجور کړم له خوب صورته *

«۵»

*۹٦۲* *۲*

زما د صبر بېړۍ یې ډوبه کړه د هجر هسی نا تار ه چله ده

(۱) یعنی: که میرا میر دی معنی یې را کړه

نور زه قلند ر یې په د وه کو نه مملوک یم

*دا ټوټه د ملا شایسته خان له خطي جونګ نه نقل شوه.

ژړا مې بخره دا له ازله ده　　　　زه چې د پرژاړم په صحبت کې

ښادي مې وا ړه په غم بدله ده　　　　گريوان په و ينوسو ر آلوده کړم

چې دتللو عده يې کله ده*　　　　قاصدده ورشه خبر يې راوړه

«٦»

*٣*　　　　*٩٦٦*

(ته) کږ ابرويې (ته) کږ رفتا ره

پرى چهره يې او ماه رخساره (١)

پر غريبانو څه خو نظر کړه

خلقه تا کړه واړه بيما ره (٢)

خوار «قلندر» دې په واويلا کړم (٣)

چېيرا نظر کړه د رب د پاره

---

* دا ټو ته د ملا ښايسته خان له خطي جونگ نه نقل شوه.

(١) ښ: کږ ابرويه يې کږ رفتاره - پرى چهروهم ماه رخساره

(٢) ښ: څه خو نظره کړه پر غريبا نو - خلقه د رسته تا کړه بيماره

(٣) ښ: کړ

«۷»

*۹٦۹*　　　　*۴*

دواړه (۱) چشمان یې ورژ نی زړونه

څکه بلبل شو په چغارونه

دلاسه یې نه کړي زما جا نا نه

خاکه څکه تا کړه مفتونه (۲)

زه قلندر به (۳) ها له بیا دی کړم

که میراشی له هیوادونه

«۸»

*۹۷۲*　　　　*۵*

ناست دفلك یم په جهازونه (۴)

بسی سی ترك کړه دیراسبا بونه

---

(۱) بښ : دوه

(۲) بښ .. څکه پرې وسوه هزار مجنونه

(۳) اصل : زه قلندر یی (بښ)

(۴) بښ : ناست یم دفلك په جهازونه

زسکه آسمان به په تجله که

که مخ ښکاره کړله حجابونه

زه «قلندر» دې ستا بتر کړم (۱)

رب دې واصل کړه میرامجنونه (۲)

«۹»

*۱*

*۹۷۵*

ذن مې په زړه کې فریاد انباردی

چې اشنا تللی په بل د یار دی

ها له به وایم که یارمې راشي

دفراق غم یې په ما ایسار دی

که میرا راشي ستا په کنار کي

«قلندره» نوم دې دمېر هزار دی (۳)

---

(۱) بش : زه قلندر دې ورك کړم میرا هه.

(۲) بش : له دې مجنونه.

(۳) اصل : شي.

«۱۰»

*۹۷۸* *۳*

اورد هجران دي رابا ندی بل دی

تند ی‌می سوزی لړسون می‌جل دی

خبر سی واخله مهرا صاحبه

که‌زه دریا د شوم وروستی محل دی

«قلندر» لاړ شو د ښکلیو میره

سوز یی په بر خه هجران یی تل دی

«۱۱»

*۹۸۱* *۳*

پابیګاه شپه می یو خوب لیدلی دی

که رب رښتیا کی ءښه می ښاغلی دی

وایم عیسی د ی راته خبري که

که قلندر له سیرا را غلی د ی

نورخوك هم شته دي‌په‌دي‌ویجاره کی

که«شاه‌قلندر» دي‌تنها مونډلی دی

«۱۲»

*۴*

*۹۸۴*

د حسن وار دې اشنا تېر يږي

جفاله تا نه او س نه ښا ئېږي

درب د پاره له جفا واوره

ګل چې شي مړا مې بوي يې زياتيږي

قيامت قايم شو په دا زمان کې

چې له «قلندره» ميرا بېلېږي

«۱۳»

*۵*

*۹۸۷*

زما په سرکې ما نمزه ا يښيږي

وجود مې ټکه تمام لړ زيږي

داد را له را کړه زما دلبره

روح له جسده زما بيليږي

زه «قلندر» دې بې عذره سر کړم
شرم حیا دې له رب نه کیږي (*)

«۱۴»

*۹۹۳*

*۵*

نن سې د زړه غخه تنا و پر ې کیږي

چې سېرا د رومې لمسا بیلیږي (۱)

زه یم په وصل د هجران خوشحاله

شیر د هجران دې ورمانږ یږي (۲)

چې له میرا بیل شوې نور «قلندره»

ترو ستا به خنګه ساعت تیر یږي

---

*دا توته د ملابایسته خان له جونګ نه نقل شوه.

(۱) نس: زړ سې را خوریږي.

(۲) نس: زه د میرا په وصل خوښ وم — شیر د هجران راته ږیږي

(۳) نس: چې سېرا بیل شه ښاه قلندره ستا ترو لا څه شکل ساعت بدا یږي

۱۳۶۵/۹/۷

«۱»

دقلندر د دیوان ترچاپ وروسته، ځینی نوري خبری هم را پیدا شوي، چی راوړل یي د دغه دیوان په تعلیق کښی ګټی نه وي ، او له لوستونکو سره یي سرسته د شاعر په پیژندنه کښي زیاته وه ، نو ځکه دالازمه وبلل شوه، چي دغه مواد په تعلیق کښي راوړل شی .

دسکندرخان ختټک ( ۱۱۱۶ ه ق ژوندی) په دیوان کی یو بیت داسی موندل کیږی :

دسکندر دقلم خوند که یې ترخوله شی
قلندر په خپل قلم په دکن مات کا (۱)

ددې بیت په حاشیه کی لیکل شوی دی: « دپښتو یو شاعرچی په خټه اپریدی یاد یږی» دلته خبره داده، هغه قلندر نومی شاعرچی دپښتو په ادبی تحقیقا تو او تاریخونو کی دقلندر په نامه مشهور دی، دحمید بابا (۱۱۴۸ ه ق ژوندی) شاگردی منی، او په دې توگه یې ژوندتر ۱۱۵۰ ه ق وروسته اټکل کیږی، او هغه قلندر شاعر چی سکندر یې یادوی او د استوگنی ځای یې د کن ښیی، دیوو اسم قرن داواخرواو دولسم قرن داوایلو شاعر معلوميږی چی اپریدی قلندر یې نه شو بللای. بله خبره په دې برخه کی داهم ده، چی داپریدی قلندر مسقط الراس خو دپښتو اد ب محققینو دباړې او جمرود توابع ښوولی دی، چی ماد غه خبرې ددی په مقدمی په پیل کی راوړی دی.

---

(۱) وگوریء! دسکندر خټک دیوان ص ۴۹، د ۱۹۶۲ ع کال د پیښو رچاپ ددوست محمد خان کامل په مقدمه.

ښاغلی اثر کښلی دی، چی د غه قلندر (په د کن کی اوسیدونکی) شاعر په قوم یوسفزی ؤ، او په دکن کی اوسیده. د مرگ کال یې یوځای ۱۰۹۷ ه ق کال په موضع زانیزی سوات کی ښیی (۲) بل ځای یې د مرگ کال ۱۱۰۰ ه ق څرگند وی (۳).

* *

د کلیدافغانی د دریم چاپ په پیل کی چی کومه مقدمه کښل شوې، د دې مقدمې د قلندر په بحث کی په اپریدی قلندر بحث شوی، او بیا د اشرف خان هجری د معاصر قلندر هغه غزل چی د اشرف خان په مطبوع دیوان کی راغلی هغه هم راخستل شوې، او د دغه بحث په پای کی کښل شوی دی: «څرنگه چی قلندر اپریدی خان د عبدالحمید ماشو خیل شاگرد او پیروبللی دی، او د عبدالحمید ژوند تر ۱۱۳۸ ه ق پوری رسیدلی دی. نو که د قلندر چی له هجری سره مشاعره کړی ده، اپریدی

(۲) وگوری ء! اباسین مجله د ۱۹٦٦ ع کال د جون گڼه ص ۳۲

(۳) وگوری ء! رحمان شاعر انسانیت ص ۲٦

قلندر وی، نودده دژوندانه بهار داشرف هجری دخزان سره سم دی، چی دی بیا خلویښت پنځوس کاله نور هم دعبدالحمید ماشوخیل تر وفاته پوری لیا دهغه تروفات وروسته هم پاتی اوعمر یی تر ډیرو کالو تیر یږی، په دې صورت دی هم داشرف خان هجری او خوشحال ختمك او هم دعبدالحمید ماشوخیل او دهغه دوردنورو شاعرانو معاصر کیږی..." (۴)

په دې اقتباس توته کی تاسی واوستل چی دقلندرا پریدی دژوند په زمانه او همدارنګه دده دپیژندنی په باب څه شکوك څرګند شوی دی هغه قلند ر شاعر چی د خوشحال (۱۰۲۲- ۱۱۰۰ ه ق)، هجری (۱۰۴۴- ۱۱۰۶ ه ق) اوسکندر خان (۱۰۶۸- ۱۱۱۶ ه ق) معاصر دی، داثر دلیکنو له مخې په ختمه یوسفزی اودسرګ کال یې ۱۰۹۷ ه ق یا ۱۱۰۰ ه ق ښوول شوی. اوا پریدی قلندر دژوندزمانه له ۱۱۵۰ ه ق وروسته ده، اودلته دهیڅ شك ځای نه پاتیږی چی دغه دواړه سره بیل شاعران دی، اوتکنی کیدل ددواړو شاعرانو په بیلتون کی هیڅ ځای

---

(۴) وګوریء د کلیدافغانی مقدمه ص ۸۲- ۸۳ .

نه‌لري، په همدې بنا دلته‌دا یادونه‌وشوه ،چې د کلید افغانی دمقدمې لوستونکی باید په شك کې ونه لوېږي ، او دواړه شاعران باید جلا کسان وبولي.

*  *

دقلندردد غه‌دیوان دتدوین په‌وخت کې پوهاندرشاد راته‌دا یادونه وکړه،چې دقلندرپه‌نامه هرشعرباید په‌دې دیوان کې داخل نه کړې، ځکه چې د پښتو په‌قدیم ادب کې پرته‌له دغه‌قلندره چې له‌سیراسره مینه‌لري،او د پښتو په ادبي تحقیقاتو کې په اپریدی‌مشهوردی، دوه‌تنه نور قلندر نومی‌شاعران هم تیرشوي دي . ما هم دخپل استاد په سپارښتنه له نوروبه‌جموعونه‌صرف هغه‌شعرونه واخیستل چې دمیرا یادونه هم پکې موندل کیده ، اودمخطوطي شعرونه خومونول را وړی‌وو . کله چې دیوان چاپ شو ، زمابل استاد ، پوهاند عبد الحی حبیبی د غه دیوان کتلی ؤ ، یوه ورځ یې‌راته وویل : زه فکر کوم په دې دیوان کې ځینې دامې شعرونه هم شته ، چې د هغو نورو قد یمو قلندر

نومو شاعرانو دې وي. ځکه د غه قلندر چې په اپریدی مشهور دی ، ځانته جلا سبك اری، او په هرشعر کې له خپل نامه سره د خپل محبوب «میرا» نوم هم راوړی، او په دی دیوان کې ځینې داسې غزلې هم سته چې د دغه قلندر نه معلومیږی. سبك او رغښت یې د قدماوو دی . ما چې د تعلیق د کښلو له پاره دیوان له سره بیا ولوست ، پر ځینو داسې غزلو پېښ شوم ، چې سبك یې د استاد دوینا له مخې قد یم معلو میده ، په دیوان کې د یوی غزلې مقطع داسې ده :

که په لاس کې یې کښتې کړم دا بر و یو
قلند ر به د د هلی شاه جها ن کړ م (۵)

له دې بیته ښکاری ، چې شاعر دغه غزله هغه وخت ویلې چې شاهجهان ( ۱۰۳۷ - ۱۰٦۸ ه ق ) په د هلی کې پاچاؤ ، اوشاعر معاصریت ځنې ښکاری. که موږ دغه غزله د هغه قلندر چې د حمید شاگرد دی وګڼو ، نو یې د ژوند زمانه دومره اوږدیږی ، چې درایت لرونکی فکر

(۵) دیوان قلندر ص ۷۵

یې نشوای منلای . په دې توگه دغه یادونه دلی وشوه ، چې له امکانه لیرې نه ده ، چې په همدې مجموعه کې دې د قدیمو قلندر نو موشاعرانو شعرونه هم راغلی وی ، او دا خبره به هغه وخت ښه سپینه شی ، چې د هغو پخوانیو قلندر نومو شاعرانو دواوین زموږ تر لاسه شی .

* * *

مادغه دیوان دمقدمې له ۳۸ مخ نه تر ۴۵ مخ پورې د«ادبی-لار» ترسرلیک لاندې د نورو شاعرانو د کلام اغیزې دقلندرپر کلام اوهمدا رنگه سی د قلندر دخاص سبك تاثیر پر نورو شاعرانو ښو ولی دی . ښاغلی حبیب الله رفیع چې دحبیب الله له خطی دیوان (۶) نه دوی ځلوریزې را نقل کړې وې ، ماته یې را وسپارلې او

(۶) حبیب‌الله د لوی احمد شاه بابا ( ۱۱۶۰ - ۱۱۸۶ هق) د زمانی شاعر دی . ددیوان یوه خطی نسخه یې د ډیلی په ملی‌موزیم کی تر ( ۱۸ ) لمبر لاندې خوندی ده ، او میکرو فلم یې د پښتو-ټولنې په کتابخانه کی شته او اوس ښاغلی عارف غروال را نقل کړی ، د حبیب الله پېژندنه په پښتانه شعراء ج ۲ ص ۵۹ - ۶۱ کی شوې ده .

دا یادونه یې راته وکړه ، چې دغه خلوریزې د قلندر د خاص سبك شوراو جذب لری ، او د قلندر دولولو او سوزند شعر ترا غیز لا ندې ویلی شوې دی ، هغه خلوریزې داد ی :

ترګل خوشبویه د ستا جما ل دی
له زمکې پورته په تیښت هلال دی
نظر د میني په خوار حبیب کړه
چې خدای درکړی حسن و کمال دی
* * *
د یار غمونو په زړه زهیر کړ م
چې یې د زلفو په تار اسیر کړم
زه یې غلام یم دی می صاحب د ی
په سر اومال زه کله تقصیر کړم ( ۷ )

که څیرې دغه څلوریزې د قلندر په چاپ شوی دیوان کې له ۱۵۵ مخ نه تر ۱۷۶ مخ پورې دده له څلوریزو سره و کتل شی

( ۷ ) د حبیب الله خطی دیوان ، میکرو فلم .

ښکاره معلومیږی ، چی حبیب‌الله د قلندر کلام لوستی دی ، او د دغه اثرات یې ښه‌ملی دی . سر بیره پردې د ده په غزل کی دقلندر دخاص سبك‌تاثیر هم لیدل کیږی ، په دیوان کی یې دوې غزلې هم دقلندر په سبك او وزن پیدا کولای شو .

* * *

ما د دغه دیوان د مقدمې په (۲۲-۳۱) مخونو کی د میرا په باب بحث کړی، او هوری د پښتانه شعراء (ج ۱ ص ۲۵۴)، تاریخ ادبیات مسلمانان هند و پاکستان (ج ۳، ص ۱۰۶) ملی هنداری (ج ۲، ص ۸۳) او اولسی نکلونه (ص ۳۸) په حواله دمیرا مړینه په ممات کی ښوول شوې ده. څرنگه دمقدمه کښنی په‌وخت کی ددیوان تولی چاپی‌فورمی زما په واك کې نه وې، چی هلته د دیوان د داخلی شهادت په استناد دغه خبرې رد شوې وای. کله چی می دتعلیق له پاره دیوان کوت، او په ۷۵ مخ کی پر دغه بیت پیښ شوم:

د میرا د قبر ځای دی په لاهور کی

قلندر ه پسی وا خله لته پته

ددی بیت نسخه بدل په پای لیکی کی د ملا مبایسته خان د

دخطي جونګ په حواله داسې ښوول شوی دی:

د میرا صاحب روضه ده په لاهور کی
قلندر ه پسی وا خله اته پته

د ادبی ستوری ښاغلی مؤلف هم دغه غزله چاپ کړی (۸)، او دا بیت په دې کتاب کی هم موندل کیږي .

له دې بیت څخه ښکاري چی میرا په لاهور کی مړ دی، او هوری ښخ شوی دی، او نورې لیکنی په دی باب د اعتبار وړ نه دی، ځکه چی د قلندر تر خپلې وینا په دې مورد کی بل ثقه سند چیرې دی؟

* * *

یوبله موضوع چی په دې تعلیق کی باید خبرې پرو کم، داده چی په دې دیوان کی ډیراولسی اصطلاحات راغلی، چی په تفصیل سره یې شرح کول ښه کار دی، خو دا چی د ټولو مفصل راوړل خبره اوږدوی

(۸) وګوریء ! ادبی ستوری ج ۱ ص ۲۵۸، ښاغلی حبیب الله رفیع پښتو ټولنه ۱۳۵۳ .

علی العجاله د ټولوله راوړو تېرېږم،او صرف دوې اصطلاحګانی یې لاندې له نورو ادبی نظایرو سره راوړم.دغه ډول اصطلاحات چی په پښتو دیوانونو کی راغلی، پوهاند عبدالشکوررشاد په خپل «ادبی قاموس» (۹) نومی اثر کی شرح کړی ، او د هری اصطلاح ادبی نظایر یې د پښتو مختلفو دیوانو څخه را ټول کړی دی .
ددغو اصطلاحاتو په باب یې دری مقالی د خپل خاص لورله مخې ماته راکړې،او ما د زیری د ۱۳۵۶ کال په دریو ګڼو کی خپرې کړې .
مادلې هم ددغو اصطلاحاتو شرح د دوی په مرسته کړی، اوپه ډېره مهربانی یې خپل ټول کړی مواد راکړی دی زه په دی برخه کی دغه دوی اصطلاحګانی څیړم: ۱ د هوسی د ښکر برات ۲ له زانو کټوری غوښتل

## (۱) د هوسی د ښکر برات:

د هوسی پر ښکر برات ورکول محال کارته د چاګمارل یا په درواغو

---

(۹) د پوهاند رشاد «ادبی قاموس» ډېر مغتنم اثر دی، خو متأسفانه تر اوسه نه دی چاپ.

او محالو وعدو د چا زړه ښه کولو ته وایی (۱۰) د قلندر دیوی غزلې په یوه بیت کې دا اصطلاح داسې راوړل شوی ده :

هـم زمـاد قتـلولـو د عـا گـوی دی
د آهـو پـه ښاخ کـوې زما بـرات (۱۱)

د نورو پښتو شاعرانو په دیوانونو کې هم دغه اصطلاح کارول شوی ده، اشرف خان هجری (۱۰۴۴-۱۱۰۶ هـ ق) ویلی دی :

د هوسی په ښکر برات دو صل مخ شه
چې راپوری ترزندی ونربدا (۱۲) شوم

(۱۰) وګورىء ! زيری، د ۱۳۵۶ کال ۱۶ ګڼه د پوهاند رشاد مقاله .

(۱۱) دیوان قلندر ص ۱۱

(۱۲) نربدا په هندوستان کې دیوه رود نوم دی، چې له ختیزه لویدیز لورى ته بهیږى او منځنى هندوستان له جنوبی هندوستانه بیلوی (وګورىء ! زيری د ۱۳۵۶ کال ۱۶ ګڼه د پوهاند رشاد مقاله )

دحمید بابا (۱۱۴۸ ه ق ژوندی) د یوی غزل په یوه بیت کی هم دغه اصطلاح موندل کیږی :

د هوسی په ښکر برات زما مطلب شو
هوسی نشه نیولی دښو په دو (۱۳)

## ۲ـ له زانو کتوری غوښتل :

دغه اصطلاح د یوه عبث او نه پوره کیدونکی امید ساتلو له پاره استعمالیږی (۱۴) دقلندر په یوه بیت کی دا اصطلاح دا سی کارشوی ده :

له خوبانو چی کوم دو فا طمع
د توری غوارم د زانو له قطار زه (۱۵)

د رحمان بابا (۱۰۴۲-۱۱۲۸ ه ق) په یوه بیت کی هم دغه اصطلاح راغلې ده :

---

(۱۳) وګوری : دراو مرجان ص ۷۴

(۱۴) وګوری : ظفراللغات ، ص ۵۳۸ ، د پیښور چاپ .

(۱۵) د یوان قلندر ص ۹۲

لکه‌و ورکی کټوری غواړی له زانو
پیدا هسی پوچ ګوپی بې اعتبارشی (۱۶)

حمید بابا (۱۱۴۸ ه ق) وېلی دی :

لکه څوك چی کټوری غواړی له زانو
هسی شان شوه د وفاتمنا پوچه (۱۷)

کاظم خان شیدا ختټك (۱۱۹۴ ه ق مړ) و یلی دی :

چی له زانو کټوری غواړی وګړی
اثر نشته دجمشید له انجمنه (۱۸)

---

(۱۶) درحمان بابا دیوان ص ۲۳۱ .
(۱۷) وګوری ! در اوسر جان ص ۲۱
(۱۸) وګوری ! دشیدا دیوان ص ۸۸

((۲))

دقلندر د دیوان دسریزې د ۹ ا مخ په حاشیه کی ما کښلی دی، چی دغه دیوان په تعلیقاتو کې به زه د قلندرجان او میرا جان د نکل په خصوصیاتو اونارویوه څېړنه کوم . د هغې وعدې له مخې دادی په خپلو خبرو پیل کوم او هغه نکل څېړم .

زموږ په مختلفو پښتنی سیمو کې ځینې کیسې او نکلونه شته، چی موضوعات یې اکثراً عاشقانه ، یا هم خرافی او کله کله هم د پښتنی

ماحول دځینو ملي قهرمانانو په کارنامو پورې اړه پیدا کوي. دغه کیسې ځینې په خپلو سیمو کې مشهورې دي ، او دځینو هم شهرت دومره ډېر شوی ، چې په اکثرو پښتني سیمو او یا ګرده پښتونخوا کې خورې شوې دي.

دغه ملي کیسې دخپلو محتویاتو له پلوه دپښتني کلتور او عنعنو او دودونو په انځورولو کې ډېرې مرستندوی او مؤثرې دي ، او دا جتماعي تاریخ په کښنه کې ډېره استفاده ځینې کیږي . زموږ په دغو کیسو کې چې محققین ، فوکلوریستان او دادبیاتو څېړونکي یې ملي کیسې بولي یوه هم «دقلندرجان او سپراجان » کیسه ده .

ددغو دوو ملګرو دمینې داستان (ددوی مینه په مختلفو ډ و اونو تعبیرشوې ده ) په زیاترو پښتني سیمو که خپور دی ، او پښتانه نکل چیان یې په حجرواو دېرو کې خلکو ته وایي .

موږته ددغه داستان دوه روایتي شکله معلوم دي ، لومړی شکل یې د پښتني فولکلور پیاوړی خدمتګار او ښاد استاد محمد ګل نوري (۹۳ ۱۳ ه ق مړ)

په خپل سهم اثر ملی هینداره ( ۱۹ ) کی ضبط کړی دی ، اوپل یې هغه‌شکل دی ، چې‌زموږ معاصرنومیالی‌فولکوریست استاد پروفیسورسیال کاکړپه‌ګوته کی‌دخلکوله خولو لیکلی دی(۱۹).

دداستان دوا ړه‌روایتی شکلونه یودبله ډېر توپیرونه‌لري ، اوحتی یودبل عکس دی.دمثال‌توګه استادنوری‌په دا ستا ن کی لیکی ، چې قلندر جان دیوه‌خان زوی‌ؤ ، دې‌خان دوی‌مایني درلو دې ، چې یوه ګرانه اوبله‌ناګرانه‌وه ، قلندرجان دګرانی‌ښځی زوی ؤ ، چې پلا ر یې مړشو ، نو قلندر جان‌اومور یې دمیرنیوورونوله‌لاسه خوراپه عذاب‌شول ، اودواړه (سوراوزوی)داسې سره‌خوښه کړه ، چې‌یوبل ځای‌ته‌و لاړشی . هماغه وؤ ، چې بلی‌سیمی‌ته سره‌ولاړل ، اوقلندر جان له میرا جان سره په‌مسجد کی‌اشنا شو ، میراجان‌هم دیوه‌خان‌زوی ؤ.

---

(۱۹ )وګوری‌ء ! ملی هینداره ، ج ۲ ، ص۷۸–۸۲.دغه‌نکل‌لومړی ځل په کابل مجله کی‌خپورشوی‌دی اوددغه کتاب‌په هغو چاپونو کی چې‌په پېښور کی‌شوی‌نه‌دی راغلی .

(۲۰ )وګوری‌ء ! پښتونکلونه ص۳۳–۳۸(مسو ده)

له یوې سودې وروسته بیا له قلندرجان نه میراجان سرور شو ، او میراجان ځینې ولاړ . اوقلندرجان پسې سرگردان گرځیده .

بالاخره قلندرجان سوات ته پسې ولاړ ، او هلته دده د هجر په غمونو کې ناروغ او مړ شو ، چې میراجان خبرشو سوات ته پسې ولاړ ، او دده په ویر او ماتم کې دی هم و مړ ، او دواړه په سوات کې د یوې غونډۍ پر سر ښخ شول .

ښاغلی سیال کاکړ ، چې د دغه نکل کوم شکل خوندی کړی ، هلته واقعات برعکس دی . هغه څه چې استاد نوری په نکل کې د قلندرجان په برخه کې راوړی ، ده بیا هما غه واقعات او جریانات د میراجان په خصوص کې ضبط کړی دی . البته د نکل په د واړو روایاتو کې یو څه اختلافات لیدل کیږی .

په دې نکل کې د پښتو د زیاترو شفاهي نکلونو* په «خیر» نارې «هم خوندي دې. د غه نارې د نورو نکلونو د نارو په څېر چوړ ښت نه لري، بلکه د څلوریزو په کالب کې ویل شوې دي، چې ځینې یې په دیوان کې هم راغلي دي، زه دلته د دغو نارو ټولي نموني ضبطوم، لومړی د قلندرجان او بیا د سیراجان نارې راوړم، د لته د ردیف مراعات نه دي شوی:

(۲۰) په پښتو شفاهي ادب کې موږ د نکل پر نارو سربېره د هوتکو نارې، او داتنې نارې هم لرو، چې ګران رفیع په خپل ابتکاري اثر د خلکو سندري لومړی ټوک طبع ۱۳۴۹ کال معرفي کړې دي. همدا رنګه د دغو نارو بل ډول ښاغلي سیال کاکړ د منځرے خیلي نارو په نامه د خپل مهم اثر پښتو او پښتانه په پښتو سېلني ځوا کې په ۳۲۴-۳۳۴ مخونو کې ضبط کړې دي (طبع ۱۹۷۷ کوټه).

* د پښتو د شفاهي نکلونو یولا ربنود ځوان لیکوال ښاغلي پتنګ په پلوشې مجله ۴ ګڼه کې مفصل کښلي دي،

## د قلندر جان ناري

که درختی درختی د پلك درختی
آشنا می ولاړه شومه بد بختی
که می دوستان دی ، که دښمنان دی
له دوی به راشی ما له سختی

* * *

که راشه راشه ، دلبره راشه
زه دي غلام یم ته می آغا شه
یار دي پرشوخو ستر گو مین کړم
بیا راته وایي له ما جلا شه

* * *

که ولاړه ، ولاړو له کنډو کی
زما یارانو ، زما دوستانو
دعا د خیر را پسی کا ندیء
خدای خبر دی ، چی بیا به راشو

که دورې، دوری د فلک دورې
زړګی می چوی داستا بی غورې
یار می جلا شو، نه راستو نیږی
زما داسوی نارې نه اوری
* * *
میږې لاښی دی، چی مخ پر کوږځی
بد قلندر دی، چی مخ پرچولځی
چول می پرغبرګوستر ګو قبول دی
ترچول بد تر وای د یار بیلتون دی
* * *
که اوردی، اوردی هجران دې اوردی
زه قلندریم پکی می کوردی
داور په سونګ د چارضاده
رضا می نه ده را باندې زور دی
* * *
که باده باده د سهار باده
بی پروادرو می له مانا ښاده

مدا ردې نښته چې و د ر ېږی

پر میراجان سی ډېر سلا م وایه

***

که سپینی سپینی سپوږمیه سپینی

احوال سی یوسه د یا رتر سیمی

پر میرا جان سی سلا م ووا یه

قلندرخوری وی ء د زړګی وینی (۲۱)

***

که ستوری ستوری دآسما ن ستوری

سلام سی وا یه د یار پر لو ری

چی هلته ورسې نوو رته وا یه

چی یاردې خوری دستر ګو توری (۲۲)

***

---

(۲۱) دغه ناری دملی هیندا ری ج ۲ نه اخیستل شوې دی .

(۲۲) دغه ناره دپښتو نکلونه نومی کتاب نه اخیستل شوې ده .

## د میرا جان ناري

کښت دې شین کېږه بیار یېل کېږه
غنم دې سن او خر و ار کېږه
زماله یا ره احوال د ې راکی ء
بل پر ایمان دې د پر فضل کېږه

***

هوسیه و خو رې دسهٔرگو تو ر ی
پر لوړ ولاړه ښکار یا ن گو ری
ښکاریان لا کله دگور بند یان شوه
خزې و لا رې دی تشی توری

***

که خاصه ، خا صه دلبره خا صه
خیمه د بخت د ې د لوړ دپاسه
ستاد اجل سپاهیان چی ر ا غله
زیرك یې وخو ت خیمه پر یباسه

د سوات په سر کی زما دلبر دی
دی په ښایست کی شمس وقمر دی
یا را نو راشیء، که دیدن کاندیء
د یار دیدن خو، حج اکبر دی

* * *

خدایه دازمکه پاره پاره کی
پردیس لا لی زما راته ښکاره کی
په بیلتانه کی الوی مکوټ شوم
یو واری دید بیا راسره وکی (۲۳)

* * *

دغه ناري اودانکل لنډیزچی تاسوو لوست په دیوان کی له موجودو شهادتو نو سره سل په سلو کی نه تطبیقیږی، اوله دي څخه ښکاری، چی په نکل کی تصرفات ډیر شوی دی.

(۲۳) سلی هینداره، ج ۲.

د قلندر د ژوند په زمانه ما د دغه دیوان د مقدمی په (۱۵-۱۹ مخونو) کی خبری کړی دی. هلته می د پښتو ادب تاریخ د محققینو د کښنوله مخې دده د ژوند زمانه ښوولی ده، خو یو اثر چی هوری له ما نه پاته ؤ، هغه د پوهاند عبدالحی حبیبی «لغة البشتو» نوی اثر دی، چی اوس یی دری ترجمه د محمد هوتك د نما نځنی د غونډې په ویاړ د کابل پوهنتون، د ادبیاتو او بشری علومو د پوهنځی له خوا چاپ شوه. استاد په دغه اثر کی هم د قلندر د ژوند زمانه تر ۱۱۵۰ ه ق کال وروسته ښوولې ده(۲۴)

* * *

ما د دیوان د مقدمی په اولو اسو مخونو کی د هغو ما خذو یادونه کړې، چی قلندر یې په قام اپریدی بللی دی. ښاغلی ظفر کاکاخیل هم په ظفراللغات کی دی په قام اپریدی بللی دی(۲۵)

---

(۲۴) وګوری، لغة البشتو، ص ۶۲، د فاضل استاد پینوا په زیار د ۱۹۶۵ ع کال د قاهری چاپ.

(۲۵) وګوری، ظفراللغات د مقدمی ع مخ، د پیښور چاپ.

د دیوان د مقدمی په(۷-۳۷ مخونو) کی د قلندر د ادبی شهرت ښوولو په ترخ کی د دوی د سینی د قصی شهرت هم ښوول شوی دی، مگر هلته د یوه بل پښتانه شاعر چی دیوان یی په شوروی اتحاد کی دی، له یادونو موږنه وو خبر، اوداد ی په دی تعلیق کی پری گرېږو: ښاغلی کوشیف دی چی د لنینگراد د ختیځ پېژندنی د انستیتوت د پښتو نسخو کوم فهرست خپور کړی دی .

نو د عبد الرحیم هوتك د دیوان(۲۵) د معرفی په ترخ کی لیکی:
د عبد الرحیم د دیوان په پانو کی د سیرا قصه هم راغلی ده(۲۶)

(۲۵) د عبدالرحیم هوتك د دیوان یو خطی نسخه په د پېښور کی ده او یو نیمگړې نسخه یې د استاد بینوا په کتابتون کی ساتل کیږی . چی اوس گران رفیع د «سره غره گلونه» په نامه منتخب کی خوندی کړې ده.

(۲۶) [illegible] ص ۵۰، د ۱۹۷۶ ع کال چاپ.

- ۳ -

مشغول شول، چې د دغه دیوان د ځینو گرانو لغاتو حل هم
د دیوان په پای کې ور گډ کړم، نو سبب د دغه د دیوان د لغاتو
یو فرهنگوټی تیار کړ خو څرنګه د تعلیقاتو مخونه زیات شول،
او د دیوان په وقایه کې د ډیرو نورو مخونو له پاره ځای
نه وُ پاته، نو ځکه د فرهنګ له پاره ځای پاتې نه شو
او د مصرف د زیاتوالی په غرض مو بله پښتی هم ور ته نشوای
چاپولای. هیله ده، چې گران لوستونکی به زما په
معذرت ومني، او په راتلونکې کې به زه دغه فرهنګ
نشریه کې خپور کړم.

د قلندر په دیوان کی زموږ له زیات دقت سره سره بیا هم ځینی چاپی تېروتنی او د تورو الوتنی شوې دي چی محترم لوستونکی به د مقدسی او متن تر لوستو د مخه د هغو په سمون ځای، زهیر کړي.

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| تعلیقا نو | تعلیقا تو | ۱۹ | ۱۶ |
| خوبرولو | خوبرو | ۲۴ | ۱ |
| په ځینو تاریخونو | په ځینو تاریخونو او د | ۲۴ | ۱ |
| دابیات | د ادبیات | ۲۵ | ۸ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| میراصاحب | میراصاحبه | ۲۸ | ۱۳ |
| چی وړه | چی لوړه | ۳۲ | ۷ |
| د دغود پېښو | د دغو پېښو | ۳۳ | ۱۴ |
| څه تاثیر پر لري | څه تاثیر لري | ۳۵ | ۹ |
| موضوعات په خپلو شعرو نوکی راوړي | موضوعات او احوالونه په خپلو شعرو نوکی هم راوړی | ۳۵ | ۱۰ |
| د انعکاس | انعکاس | ۳۵ | ۱۸ |
| چی هغه وخت د چی | د هغه وخت د اجتماع | ۳۶ | ۳ |
| او داسړی په دی | او د اخبري سړی په دی | ۳۶ | ۴ |
| (۱۰۴۲ — ۱۱۲۳ ه ق) | (۱۰۴۲—۱۱۲۸ ه ق) | ۴۱ | ۷ |
| څېنو د قلندر | هم څېنو د قلندر | ۴۶ | ۱۰ |
| او هغه | او هغه یادونی | ۴۶ | ۱۱ |
| (۱۳۲۰—۱۳۹۶ ه ق) | (۱۳۲۰—۱۳۹۳ ه ق) | ۴۹ | ۱۲ |

د ۵۳ مخ په څلورمه لیکه کی «ملاښایسته خان» د جونګ وړوکی عنوان پاتی دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| دملاښایستخان | دملاښایسته‌خان | ۵۳ | ۱۶ |
| مخ دی | مخ دي | ۵۴(متن) | ۱ |
| دعقل لکه | دعقل کله | ۶۳ | ۲۰ |
| سوته | صوته | ۷۳ | ۱۴ |
| داکله | داکلمه | ۱۰۸ | ۱۴ |
| کادی | کاندی | ۱۱۰ | ۱۱ |
| پرگری فتار | پري گرفتار | ۱۲۵ | ۱ |
| لوکی | نوکی | ۱۵۰ | ۳ |
| غوله | خوله | ۱۵۲ | ۱۳ |
| بلی | با | ۱۵۶ | ۹ |
| دایم غلی | داغلی یم | ۱۵۷ | ۴ |
| قلندری د | قلندردي | ۱۶۱ | ۵ |
| عده یی | وعده یی | ۱۷۸ | ۳ |

# COLLECTIVE WORKS
# of
# QALANDAR

Introduction and Editing

BY

Z. Hewadmal

PUBLISHED

BY

PUSHTU ACADEMY

Government Printing House

1977